

# ملي سرود

دا وطن افغانستان دی
کور د سولې کور د تورې
دا وطن د ټولو کور دی
د پښتون او هزاره وو
ورسره عرب، گوجر دي
براهوي دي، قزلباش دي
دا هیواد به تل ځلیږي
په سینه کې د آسیا به
نوم د حق مو دی رهبر

دا عزت د هر افغان دی
هر بچی یې قهرمان دی
د بلوڅو د ازبکو
د ترکمنو د تاجکو
پامیریان، نورستانیان
هم ایماق، هم پشه یان
لکه لمر پر شنه آسمان
لکه زړه وي جاویدان
وایو الله اکبر وایو الله اکبر

بسم الله الرحمن الرحیم




د پوهنې وزارت

# پښتو

## دولسم ټولګی

۱۳۹۸ هـ. ش. کال

## د کتاب ځانګړتیاوې


**مضمون:** پښتو

**مؤلفین:** د تعلیمي نصاب د پښتو ژبې او ادبیاتو څانګې د درسي کتابونو مؤلفین

**ایډیټ کوونکي:** د پښتو ژبې د ایډیټ ډیپارټمنټ غړي

**ټولګی:** دولسم

**د متن ژبه:** پښتو

**انکشاف ورکوونکی:** د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تألیف لوی ریاست

**خپروونکی:** د پوهنې وزارت د اړیکو او عامه پوهاوي ریاست

**د چاپ کال:** ۱۳۹۸ هجري شمسي

**د چاپ ځای:**

**چاپخونه:**

**برېښنالیک پته:** curriculum@moe.gov.af

## د پوهنې د وزیر پیغام

اقرأ باسم ربک

د لوی او ښښونکي خدای ﷻ شکر په ځای کوو، چې موږ ته یې ژوند رابښلی، او د لوست او لیک له نعمت څخه یې برخمن کړي یو، او د الله تعالی پر وروستي پیغمبر محمد مصطفی ﷺ چې الهي لومړنی پیغام ورته (لوستل) و، درود وایو.

څرنګه چې ټولو ته ښکاره ده ۱۳۹۷ هجري لمریز کال د پوهنې د کال په نامه ونومول شو، له دې امله به د ګران هېواد ښوونیز نظام، د ژورو بدلونونو شاهد وي. ښوونکی، زده‌کوونکی، کتاب، ښوونځی، اداره او د والدینو شوراګانې د هېواد د پوهنیز نظام شپږګوني بنسټیز عناصر بلل کیږي، چې د هېواد د ښوونې او روزنې په پراختیا او پرمختیا کې مهم رول لري. په داسې مهم وخت کې د افغانستان د پوهنې وزارت د مشرتابه مقام، د هېواد په ښوونیز نظام کې د ودې او پراختیا په لور بنسټیزو بدلونونو ته ژمن دی.

له همدې امله د ښوونیز نصاب اصلاح او پراختیا، د پوهنې وزارت له مهمو لومړیتوبونو څخه دي. همدارنګه په ښوونځیو، مدرسو او ټولو دولتي او خصوصي ښوونیزو تأسیساتو کې، د درسي کتابونو محتوا، کیفیت او توزیع ته پاملرنه د پوهنې وزارت د چارو په سر کې ځای لري. موږ په دې باور یو، چې د باکیفیته درسي کتابونو له شتون پرته، د ښوونې او روزنې اساسي اهدافو ته رسېدلی نشو.

پورتنیو موخو ته د رسېدو او د اغېزناک ښوونیز نظام د رامنځته کولو لپاره، د راتلونکي نسل د روزونکو په توګه، د هېواد له ټولو زړه سواندو ښوونکو، استادانو او مسلکي مدیرانو څخه په درناوي هیله کوم، چې د هېواد بچیانو ته دې د درسي کتابونو په تدریس، او د محتوا په لېږدولو کې، هیڅ ډول هڅه او هاند ونه سپموي، او د یوه فعال او په دیني، ملي او انتقادي تفکر سمبال نسل په روزنه کې، زیار او کوښښ وکړي. هره ورځ د ژمنې په نوي کولو او د مسؤولیت په درک سره، په دې نیت لوست پیل کړي، چې د نن ورځې ګران زده‌کوونکي به سبا د یوه پرمختللي افغانستان معماران، او د ټولنې متمدن او ګټور اوسېدونکي وي.

همدا راز له خوږو زده کوونکو څخه، چې د هېواد ارزښتناکه پانګه ده، غوښتنه لرم، څو له هر فرصت څخه ګټه پورته کړي، او د زده کړې په پروسه کې د ځیرکو او فعالو ګډونوالو په توګه، او ښوونکو ته په درناوي سره، له تدریس څخه ښه او اغېزناکه استفاده وکړي.

په پای کې د ښوونې او روزنې له ټولو پوهانو او د ښوونیز نصاب له مسلکي همکارانو څخه، چې د دې کتاب په لیکلو او چمتو کولو کې یې نه ستړې کېدونکې هلې ځلې کړې دي، مننه کوم، او د لوی خدای ﷻ له دربار څخه دوی ته په دې سپېڅلې او انسان جوړوونکې هڅې کې بریا غواړم.

د معیاري او پرمختللي ښوونیز نظام او د داسې ودان افغانستان په هیله چې وګړي یې خپلواک، پوه او سوکاله وي.

د پوهنې وزیر

دکتور محمد میرویس بلخي

# فهرست

# د عرفان روښنايي

د عرفاني شاعرۍ په هکله څومره معلومات لرئ؟

په پښتو کې د دعایه شاعرۍ بل نوم څه دی؟

د دولسم ټولګي پښتو کتاب د لوی خدای جل جلاله په نامه پیلوو. موږ او تاسو د هر کار پیل د الله جل جلاله په نوم کوو او له دې څخه مو موخه دا وي چې په کار کې مو خیر او برکت پیدا شي. دولسم ټولګی زموږ د ثانوي زده کړو وروستی ټولګی دی او موږ یې د خدای پاک په سپېڅلي نامه پیلوو او هیله کوو چې راتلونکي ته هم د خپل ځان لپاره، هم د خپلې کورنۍ لپاره، هم د افغاني ټولنې او هم د ټولې بشري ټولنې لپاره یو خیر غوښتونکی، مهربان او کارپوه انسان راڅخه جوړ شي. په همدې هیله دغه کتاب د پښتو د نومیالي کلاسیک شاعر علي محمد مخلص په دې لاندې مناجات پیلوو.

نن د زړه دانايي غواړم له وهابه
له دښنو رهايي غواړم له وهابه

چې گويا په تسبيحات په مواعظ وي
فرقاني گويايي غواړم له وهابه

په هر بوی چې شم اگاه مولا مې ياد شي
اينچنين پويايي غواړم له وهابه

چې ازاد د دواړو کونو له سودا وي
هسې زړه شيدايي غواړم له وهابه

چې فاني شي بقايي د ابد مومي
د ابد بقايي غواړم له وهابه

چې هېڅ ځيز مې په نظر کې حايل نه وي
د وحدت هوايي غواړم له وهابه

معرفت د زړه افتاب زړه يې روشن دی
د عرفان روښنايي غواړم له وهابه

چې په خوی شي ښايسته، ښايسته تل وي
زه خودي زيبايي غواړم له وهابه

گدايي د حق په در لويه شاهي ده
دا مخلص گدايي غواړم له وهابه

د شاعر پېژندګلوي:

علي محمد مخلص په پښتو کې د روښاني غورځنګ له نومياليو شاعرانو او ليکوالو څخه دی. هغه د ابابکر کندهاري شينواري زوی دی.

ابابکر د احداد او الهداد د پوځونو يو قومندان و، کله چې احداد او الهداد سره خوابدي شول، نو الهداد (رشيد خان) هندوستان ته لاړ. ابابکر هم د هغه په ډله کې و. نوموړی د پښتو شاعر او ليکوال و. د ((مراة العارفين)) او ((سراج العارفين)) کتابونو مؤلف دی.

علي محمد مخلص په غالب ګومان د ۱۰۱۵ او ۱۰۲۰ هـ. ق. کلونو په شاوخوا کې زېږېدلی دی. څېړونکي وايي چې هغه به يا په کندهار او يا هم په تيراکې زېږېدلی وي چې د روښاني غورځنګ روحاني او عسکري مرکز و او د هغه د مور پلارګنی سيمه وه. نوموړی عالم او فاضل شخص و. مشهور اثر يې د بايزيد روښان ((حالنامه)) ده چې په فارسي ژبه يې ليکلې او د پير روښان او روښاني غورځنګ په اړه يکې ډېر مهم او لومړي لاس تاريخي مواد وړاندې کوي. د شعرونو ديوان يې د ډاکټر پرويز مهجور خويشکي په همت چاپ او خپور شوی دی. يوه منثوره رساله يې هم د هندوستان په کتابتونونو کې پيدا شوې ده.

د علي محمد مخلص د مړينې دقيقه نېټه نه ده څرګنده، خو د هغه د ديوان او حالنامې د پېښو له بيان څخه يې د مړينې نېټه د ۱۰۸۰هـ. ق. حدود اټکلولی شو.

خرګندونه

احداد او الهداد: د بايزيد روښان او روښاني غورځنګ د مبارزو مخکښان وو.



## فعالیتونه

۱ـ یو یو زده‌کوونکی دې د دغه مناجات یو یو بیت ولولي. د لومړني زده‌کوونکي د بیت له لوستلو څخه وروسته دې یو تن په خپله خوښه د بیت معنا وکړي او یو څه خبرې دې پرې وکړي. د دویم زده‌کوونکي د بیت له لوستلو څخه وروسته دې د بیت د معنا او تفسیر په اړه ښوونکی خپله یو تن انتخاب کړي.

۲ـ یو یو شاگرد دې په خپله خوښه له یو یو ټولگیوال څخه د دغو لغتونو د معنا پوښتنه وکړي او د معنا په څنگ کې دې یې په یوه ادبي جمله کې وکاروي:

دښنه، تسبیحات، فرقان، معرفت، فاني، وحدت، شیدایي، رهایي

۳ـ د دغه مناجات د عمومي مفهوم په اړه دې پنځه تنه زده‌کوونکي لنډې لنډې خبرې وکړي.

٤ـ زده‌کوونکي دې دغو پوښتنو ته ځواب ووایي:

ـ تاسو په پښتو ژبه کې کوم کوم عرفاني او تصوفي شاعران پېژنئ؟

ـ د بایزید روښان د ملي او عرفاني غورځنگ د کومو شاعرانو نومونه مو یاد دي؟

ـ د روښاني غورځنگ شاعرانو څه ډول شاعري کړې ده؟



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې په پښتو پخوانیو ادبیاتو کې د تصوفي او عرفاني شاعرۍ په اړه نیمه پاڼه په خپلو کورونو کې ولیکي، د ځینو شاعرانو نومونه دې واخلي او د هغوی د کتابونو لنډه یادونه دې وکړي.





# نعت

د اسلام د مبارك پیغمبر حضرت محمدﷺ په ستاینه کې زموږ ډېرو شاعرانو د خپلو قلمونو ښایست د خپلو دیوانونو پر پاڼو شیندلی دی. شاعرانو د حضرت پیغمبرﷺ د ستاینې پر کرښو د خپل شعر دیوانونه متبرك کړي دي.

په دغه لوست کې به موږ هم خپل کتاب د خپل پیغمبرﷺ په ستاینه او یادونه سپېڅلی کړو. دغه نعت د پښتو د پیاوړي شاعر حاجي جمعه بارکزي له دیوان څخه غوره شوی دی.

تر نامه دې سم قربان ستا محمدهﷺ
هم تر واړه خاندان ستا محمدهﷺ
چې رضا دې په رضا و خاوند ورکړه
هر مشکل يې کړ اسان ستا محمده ﷺ
معرفت دې تر توحيده پورې تللی
بل څوک نه وينم په شان ستا محمده ﷺ
پيغمبران يولک څلېريشت زره وايي
رب کړه واړه خادمان ستا محمدهﷺ
که معراج د موسی پاس پر کوه طور و
رب معراج کړ لامکان ستا محمده ﷺ
رب منسوخه کړه درې واړه کتابونه
چې يې راستاوه فرقان ستا محمده ﷺ
تې (ته يې) سردار په دواړو کونو په قدرت کړې
هم تابع دې اين و آن ستا محمدهﷺ
غفلت حرص ورڅخه ولاړ قناعت ونيو
هم پر زړه باندې مکان ستا محمدهﷺ
په معنی يې د رموزو پوهولې
رب په باب کې مهربان ستا محمدهﷺ
تر ازله به باقي وي تل تر تله
کمال نه لري نقصان ستا محمدهﷺ
نور دينونه يې منسوخ کړه همه واړه
چې ښه دين يې کړ برهان ستا محمدهﷺ
د توحيد د باغ ګلاب يې غوړېدلي
معطر په بوی جهان ستا محمدهﷺ

بـل چـــراغ دې د يـقـيـن د وړانـــدې ونـيـو
مـخـفـي راز سـو در عـيـان سـتـا محمدهﷺ
و مــكـــان تـــه د لـــويـــى دې نـــه رســـېـــږي
او الـــلـــعـــزم مـــرســـلان سـتـا محمدهﷺ
زه يـــې كـــلـــه كــــرم ادا صـفـت دې كـــبـــږي
پـــر زمـــيـــن و پـــر آسمان سـتـا مـحـمـده ﷺ
مـــا "جـــمـــعـــه" دې د بــــاور لاســـونـــه دواړه
لـــگـــولـــي پـــر گـــريـــوان سـتـا محمدهﷺ

د شاعر پېژندگلوي:

حاجي جمعه بارکزی د پښتو ژبې له نوميالیو شاعرانو څخه دی. د کندهار په ماشور نومي کلي کې زېږېدلی دی. په پښتانه شعرا کې يې د مړينې نېټه (۱۲۵۹هـ.ق.) ښودلې ده.

دی د سردار کُندل خان معاصر و چې د نوموړي لومړنی واکمنې په خپلو شعرونو کې يادوي. ديوان يې په کابل کې په (۱۳۶۰هـ.ق.) کال چاپ شوی دی.



## فعاليتونه

۱_ زده‌کوونکي دې ټول د دې نعت شريف يو يو بيت ولولي، کله چې ټول نعت په لوړ غږ ولوستل شو، بيا دې نو پاتې زده‌کوونکي يو يو بيت معنا او د هر بيت په اړه دې يو څه خبرې وکړي.

۲ـ هر یو زده‌کوونکی دې د پښتو د لرغونې او منځنۍ دورې د شاعرانو له ډلې څخه د یو یو نوم واخلي، هېڅوک دې تکرار نوم نه اخلي.

۳ـ یو شاگرد دې دغه لغتونه پر تختې ولیکي او بیا دې یو بل شاگرد تورې درې ته پورته شي، له دغه لوست څخه دې اته نور لغتونه ولیکي، بیا دې شپاړس تنه زده‌کوونکي دغه لغتونه یو یو معنا کړي او دا دې هم ووایي چې دا اسم دی که صفت یا فعل؟

واړه، پاس، منسوخ، لامکان، غوړېدل، باور.

٤ـ په حمد او نعت کې پر کومو موضوعگانو خبرې کېږي؟

دوه تنه زده‌کوونکي دې د نورو په مخ کې پرې رڼا واچوي.

٥ـ د نعت دغه بیت څه معنا لري؟

رب منسوخه کړه درې واړه کتابونه
چې یې راستاوه فرقان ستا محمدهﷺ




زده کوونکي دې دغه نعت شریف یو ځل بیا په خپلو کورونو کې ولولي او بیا دې د ټول نعت لنډ مفهوم په نیم مخ کې په خپلو کتابچو کې ولیکي. بله ورځ دې په پښتو درسي ساعت کې ښوونکی په انتخابي ډول د پنځو تنو شاگردانو لیکنې ټولو ته واوروي.



# پښتو او پښتانه

د پښتو ژبې او یا په عمومي توګه د پښتنو په هکله به تاسو خامخا یو څه لوستي او اورېدلي وي. یعنې دا چې د پښتو ژبې منشاء او چینه چېرته ده او د ژبو له کومې کورنۍ سره اړه لري؟ یا دا چې پښتانه په کوم توکم پورې مربوط دي؟

دغه ډول څېړنو ته اتنولوجي هم وايي چې د توکم یا نژاد تاریخي علمي څېړنه کوي.

د ژبې د تاریخي اړیکو په باب څېړنه په ژبپوهنه پورې هم اړه پیدا کوي.

په دې لوست کې د پښتو او پښتنو په اړه دغه لنډه تاریخي څېړنه کوو.

- پښتو ژبه د ژبو په کومې کورنۍ پورې تړلې ده؟
- ستاسو په نظر پښتانه په کوم توکم پورې تړلي دي؟
- د آریایانو په اړه مو څه لوستي دي؟

پښتو د نړۍ له پخوانیو ژبو څخه ده. پښتانه هم د نړۍ د یو پخواني ټبر په توګه د اوږد تاریخ لرونکي دي. د پښتنو د توکم (نژاد) په اړه د پوهانو او څېړونکو له خوا تر اوسه پورې بېلابېلې نظریې وړاندې شوې دي.

یو شمېر کسانو د پښتنو په اړه د هغوی د ((سامي)) توکم نظریه ورکړې وه او دوی یې له آره (بني اسرائیل) ګڼلي وو. پښتو یې هم پر همدغې ژبنۍ کورنۍ پورې نښتې ګڼلې وه. دغه نظر یوازې یوه افسانوي او له حقیقته لرې نظریه وه چې پر هېڅ ډول علمي څېړنو او اصولو نه وه ولاړه.

د نړۍ پوهانو د خپلو علمي څېړنو په رڼا کې دا موضوع پوره څېړلې ده. پښتو یې هندو آریایي یا ایندو- جرمن ژبو په کتار کې یوه پخوانۍ ژبه ګڼلې ده. پښتانه یې هم د آریایي توکم مربوط ولس ګڼلی دی.

((د افغانستان ژبې او توکمونه)) په نوم د کتاب مؤلف ارواښاد دوست شینواري په دې اړه اوږده څېړنه کړې ده چې افغانستان د آریایي ژبو زانګو ده. د هغه د څېړنو ځینو برخو ته پاملرنه اړینه ده:

د معاصر افغانستان په خاوره کې دننه او د هغه د باندې په ګاونډیو نژدې سیمو کې ارکیالوژیکي (لرغونپوهنیزې) پلټنې او څېړنې او د هغو نتیجې څېړونکو ته دا قناعت ورکوي چې افغانستان د لرغونو آریایي قومونو زانګو او ټاټوبی دی. بشر چې د تاریخي پېښو ډېر تیاره اړخونه نن د زیار، هاند او فني وسایلو په مرسته روښانه کړي، د نولسمې پېړۍ له پیله دا نظریه ورته پیدا شوې چې پښتانه د بشري لویو کورنیو په لړ کې هندو اروپایي او په هغه کې آریایي باختري توکم دی. دا نظریه د پښتونخوا د لرغونو تاریخي اسنادو او له نورو ژبو سره د پښتو په تاریخي مقایسوي رڼا کې سپینه شوې ده.

مهمه خبره دا ده چې د هر اړخیزو څېړنو په رڼا کې پښتو ژبه د هندو اروپایي، یا هندو آریایي یا هندو جرمن ژبو په کتار کې خپل ځانګړی ځای لري. څرنګه چې ژبنۍ تاریخي او مقایسوي څېړنې یو علم دی او د همدغه علم په چوکاټ کې پښتو آریایي ژبه ګڼل کېږي، نو خپله ولس یې هم ((چې پښتانه دي))، په همدغه توکم پورې اړه لري.

اروااښاد پوهاند حبیب الله تږی په خپل (پښتانه) نومې کتاب کې په دې هکله د نړۍ د بېلابېلو پوهانو او څېړونکو نظرونه راوړي دي. هغه وايي:

هر څومره چې د ژبې تاریخي مقایسوي څېړنې زیاتره د علم حیثیت غوره کاوه، د ژبو په باره کې مطالعه هم هغومره دقیقه کېدله. د پښتو په برخه کې هم پوهانو یوازې په دې قناعت ونه کړ چې د هندو- آریایي ژبو په کورنۍ پورې مربوطه آریایي ژبه یې وبولي، بلکې غوښتل یې دا هم معلومه کړي چې د دغې لویې کورنۍ له کومې څانګې سره څانګړې اړیکه لري.

څرنګه چې په پښتو کې د هندو آریایي ژبو د لویې کورنۍ د دواړو ډلو (ختیځ او لویدیځ) څانګړتیاوې په پراخه توګه شته دي، هغه پوهان چې پښتو یې د هندو اروپایي یا هندو آریایي ژبو په ختیځه یا هندي څانګې پورې اړونده ګڼلې وه، په هغوی کې دغه نومونه د یادولو دي: رابرټ لیچ، رودولف هورنل او څو نور... هغه پوهان چې پښتو یې د دغې لویې کورنۍ په لویدیځه څانګه پورې اړونده ګڼلې، دغه پوهان دي: شیلي ډیور، ماکس میولر او نور...

یو شمېر پوهانو بیا دا خبره په ډېره څرګنده توګه کړې ده چې پښتو د هندو آریایي ژبو په دوو ختیځو او لویدیځو څانګو کې (یا د سانسکریت او اوستا) په څنګ کې خپل یو څانګړی هویت (پېژند) لري او په حقیقت کې د دواړو ترمنځ د اتصال کړۍ ده.

نومیالی ختیځ پوه جیمز ډارمستتر په دې نظر دی چې پښتو له زند یا اوستا سره نژدې اړیکې لري، خو د هندي ژبو یو شمېر څانګړنې یې هم خپلې کړې دي. یو شمېر اوسني ژبپوهان، لکه: د جرمني سبیستیان هاینه هم په دې نظر دي چې پښتو د جوړښت او د لغاتو د پانګې دواړو په برخه کې له بلې هرې ژبې څخه زیات له اوستا سره نژدې ده.

پوهاند عبدالحی حبیبي ((د پښتو ادبیاتو تاریخ)) په لومړي ټوک کې په دې اړه ډېرې زیاتې څېړنې کړې دي. له اوستا (زند) او سنسکریت (ریګویدا) سره یې د پښتو ژبې هر اړخیزه پرتله کړې ده، هغه هم دې پایلې ته رسېدلی دی چې پښتو ژبه له اصلي (لومړنۍ) اروپایي ژبې څخه راجلا شوې ژبه ده، چې له اوستا او سنسکریت سره اړیکې لري او د دوی ترمنځ واقع ده. په حقیقت کې د دوی د وصل د کړۍ په توګه ارزښت لري.

د متن لنډیز:

پښتو یوه لرغونې ژبه او پښتانه د نړۍ یو لرغونی ټبر یا ولس دی. د هغو هر اړخیزو څېړنو په پایله کې چې کورنیو او بهرنیو څېړونکو مؤرخینو او ژبپوهانو کړې دي، پښتو د هندو اروپايي یا آريايي ژبو د کورنۍ یوه مهمه ژبه ده. په دې توګه نو د دغې ژبې ویونکي هم په همدغه توکم یا همدغه لویه کورنۍ پورې اړه لري.

څېړونکو او ژبپوهانو په دې برخه کې هم څېړنې کړي چې د آريايي ژبو د لویې کورنۍ په کومه څانګه کې د پښتو ژبې موقعیت تثبیت کړي؟ ځینو څېړونکو له سنسکریت او ځینو له اوستا سره پښتو نژدې ګڼلې ده، خو یو شمېر پوهان او د ژبو څېړونکي نظر لري چې پښتو د آريايي ژبو د ختیځو او لویدیځو څانګو ترمنځ واقع ده او د سنسکریت (ریګویدا) او زند (اوستا) ترمنځ د اتصال د کړۍ په څېر ده.

## څرګندونې

اتنولوجي (اتنوګرافي) د بشر د توکم او نژاد په اړه علمي څېړنو ته ویل کېږي.

ارکیالوجي (ارکیالوژي ـ لرغونپوهنه) د نړۍ د لرغوني تاریخ په اړه، د لرغونو انسانانو، لرغونو تمدنونو او لرغونو موجوداتو په اړه څېړنې کوي. د ولسونو د لرغوني تاریخ او لرغونو نښو نښانو په اړه څېړنې د دې علم موضوع ده.

هندو اروپايي: دغه اصطلاحات د نړۍ د بېلابېلو ژبپوهانو له خوا په بېلابېله بڼه راغلي دي. چا هندو اروپايي، چا هندو جرمن، چا هندو آريايي اصطلاح کارولې ده، خو د ټولو موخه ترې هماغه هندو اروپايي ژبنۍ کورنۍ ده چې د ختیځ او لویدیځ هېوادونو او ولسونو ډېرې ژبې پکې راداخلېږي. پښتو ژبه هم په همدغه کورنۍ کې شامله ده.



## فعالیتونه

۱ـ زده‌کوونکي دې د دې لوست په پام کې نیولو سره دغو پوښتنو ته ځوابونه ووایي:

- دا چې پښتانه په (سامي) توکم پورې مربوط دي، دغه نظریه کوم علمي بنسټ لري، که نه؟
- د آریایي ژبو په کتار کې د پښتو ژبې مقام کوم دی؟
- پوهانو پښتو ژبه د آریایي ژبو په کورنۍ کې په کومو کومو څانګو پورې تړلې ده؟

۲ـ په دغو څلورو ځوابونو کې کوم یو سم دی، په نښه یې کړئ:

الف: پښتو د هندو اروپایي یا هندو جرمن کورنۍ په ژبو پورې اړه لري.

ب: پښتو د سامي ژبو په کورنۍ پورې مربوطه ده.

ج: پښتو د تُرکي ژبو کورنۍ ته منسوبه ده.

د: درې واړه ځوابونه سم دي.

۳ـ زده‌کوونکي دې د دغو درېو موضوعګانو په اړه په وار سره لنډې لنډې خبرې وکړي:

- د پښتو ژبې لرغونتوب
- پښتو د آریایي ژبو د دوو لویو څانګو د اتصال د کړۍ په توګه
- افغانستان د آریایانو ټاټوبی





د دې لوست تر یو ځل بیا لوستلو وروسته د پښتو ژبې په اړه د پوهانو د هغو دریو نظرونو لنډیز ولیکئ چې د آریایي ژبو د کورنۍ په کومو کومو څانگو پورې یې اړونده گڼلې ده.

لا تر اوسه یې ماغزه په قرار نه دي
چا چې ما سره وهلی سر په سنگ دی
لا په خوب کې په لړزه پریوځي له کټه
چې د چا تر غوږ زما د توري شرنگ دی
د خوشحال د زړه د حال ننداره وکړه
که د تخت د پاسه کښېني هم ملنگ دی
((خوشحال خان خټک))

طوطي مې ووت نن له قفسه
خالي کالبد یم زه بې نفسه
رب په غربت کې لکه بېکس کړم
خدای دې څوك نه کا هسې بېکسه
((د پیرمحمد کاکړ له دیوان څخه))

# سلیمان ماکو او د هغه «تذکرة الاولیاء»




تذکرة الاولیاء د پښتو د لرغوني نثر یو کتاب دی. تاسو د لسم ټولګي په پښتو کتاب کې د پښتو ادب د لرغوني دورې په هکله پوره معلومات ترلاسه کړي وو. د پښتو ادب په لرغونې دوره کې مو د پښتو نثر د پیلامې د آثارو په باب هم یو څه لوستي وو.

دا دی په دې لوست کې د سلیمان ماکو د تذکرة الاولیاء په اړه بشپړې خبرې لرو. تاسو به په دې لوست کې د پښتو لرغوني نثر دغه کتاب په پوره ډول وپېژنئ او د پښتو د لرغوني نثر په ځانګړنو به خبر شئ.

سلیمان ماکو د پښتو د لرغونې دورې پیاوړی لیکوال دی. هغه د ((تذکرة الاولیاء)) په نوم یو ډېر مهم اثر په پښتو نثر لیکلی دی چې له بده مرغه ټول کتاب یې لاس ته نه دی راغلی او یوازې د پیل څو پاڼې یې د ارواښاد استاد پوهاند حبیبي په زیار پیدا شوې او خپرې شوې دي.

سلیمان ماکو د بارک خان صابزي ماکو زوی دی چې د کندهار په ارغسان کې اوسېده. نوموړي د پښتونخوا په غرو رغو کې سیاحتونه کړي او د خپل عصر نومیالي روحاني او ادبي رجال یې لیدلي دي. دی په خپله وایي چې په (٦١٢ هـ.) تللی وم او د پښتونخوا په غرو او رغو گرځېدم. تر دغه سفر وروسته سلیمان ماکو په دې بریالی شو چې د پښتنو د نامتو لویانو د ژوند په اړه د ((تذکرة الاولیاء)) په نوم یوه تذکره ولیکي.

د استاد حبیبي په قول: د سلیمان تذکره د پښتنو مشاهیرو او ادبي رجالو یو مفصل تاریخ دی. د هر سړي احوال چې بیانوي، د هغه علمي او روحاني مقام ښیي او بیا یې اشعار او ویناوې رانقلوي. د تذکرې یو څو پاڼې چې پیدا شوې دي، دا ځنې معلومېږي چې د پښتنو مشاهیرو احوال یې په داسې ډول لیکه چې د هغو د ژوندانه پېښې ثبت شي چې پلاني سړي څنگه ژوند کاوه، چېرې اوسېده، پلار، نیکه او کورنۍ یې کومه او چېرې وه او له هغه سړي څخه د خلکو په خولو او زړو کې کومه وینا او کوم شعر پاتې دی.

هغه د خپل دغه کتاب په سریزه کې د دې کتاب د لیکلو موخه او د خپل سفر موخې هم بیانوي.

همدغه برخه به د دې کتاب د نثر د بېلگې په توگه هم ولولئ:

((زه غریب خاورې سلیمان، زوی د بارک خان ماکو صابزي چې په ویاله د ارغسان هوسېږم او په دې مزکو پایېږم په سن دولس او شپږ سوه (٦١٢) د هجري تللی وم او د پښتونخوا په راغو او کلیو گرځېدم او مراقد د اولیاوو او واصلینو مې پلټل او په هر لوري مې کاملان موندل، چې له دې سفره په کور کښېنستم او تنهاکې وچاودلې د پښو، بیا پاڅېدلم او له ښښتنه مې مرستون شوم چې احوال د هغو کاملانو وکاږم او دوی چې هغه ویناوې پاته کړې دي او پښتانه یې لولي اوس.))

د تذکرة الاولیاء په هغو اوو پاڼو کې چې زموږ لاس ته راغلې دي، د دغو شاعرانو او لیکوالو احوال پکې راغلي دي:

۱ـ بیټ نیکه ۲ـ ملکیار غرشین ۳ـ شیخ اسماعیل ٤ـ قطب الدین بختیار

تر سلیمان ماکو د مخه د پښتو نثر کومه منثوره نمونه موږ ته نه ده معلومه چې پخوا به د پښتو نثر څنګه و او څه سبک او ډول یې لاره؟ خو د سلیمان د نثر پوخوالی او متانت دا راته څرګندوي چې د دغه عصر نثرونه به داسې پاخه وو او لکه د پارسي نثر چې په هغه وخت کې (په غزنوي او غوري دورو کې) متین، پوخ او خوږ و، د پښتو نثر به هم په زړه پورې او خوږ و.

د سلیمان ماکو د نثر څو ځانګړتیاوې:

۱ـ دغه نثر روان او خوږ دی، بې له کړکېچ او کړلېچه دی.

۲ـ د اوږدو جملو پر ځای، لنډې لنډې جملې کاروي. یوه جمله په بله پورې نه تړي.

۳ـ د طبیعي مکالمې او روانو خبرو اترو بڼه لري.

٤ـ جملې یې غوڅې، څرګندې او واضح دي.

۵ـ ځینې داسې زاړه تعبیرونه او اصطلاحات هم لري چې اوس نشته مثلاً (تناکې وچاودلې د پښو) چې مقصد یې په خپل کلي کور کې هوسایي ده.

٦ـ که څه هم د پارسي کلمات ډېر نه راوړي او زیاتره پښتو سوچه او نږه کلمې لیکي، خو بیا هم د چاپېریال د اغېز له مخې یې د دې ژبې د ترکیبونو او لغتونو یو څه اغېز منلی دی، لکه دغه کلمې:

درخواست، سپاس، خاک پای، مهربان او نور...

۷ـ د سلیمان په نثر کې تر فارسي د عربي ژبې اثر هم ډېر او درونډ ښکاري او د دې علت هم دا دی چې عربي په دغو وختو کې د پښتنو درسي او دیني ژبه وه او که به چا له علمه سره مینه درلوده، هغه به عربي زده کوله. څرنګه چې سلیمان یو متدین او تصوف ته مایل او د دیني علومو طالب سړی و، نو هغه به خامخا عربي کتابونه لوستي وي. د عربي

دغه اثر یوازې په پښتو نثر کې نه دی، بلکې د هغه وخت د پارسي نثر په شهکارونو کې هم د عربي نثر اغېز جوت دی، نو د پښتو نثر له یوې خوا له عربي نثره اغېزمن دی او له بله پلوه یې له فارسي نثره ګټه اخیستې ده چې هغه له عربي اغېزه خالي نه و، نو له دې کبله د سلیمان ماکو په نثر کې د عربي اغېز ښه څرګند دی.

۸_ په دې نثر کې د فعلونو تکرار هم لکه د نورو ژبو د لرغونو نثرونو په څېر تر سترګو کېږي او کله خو په پرله پسې ډول زیات فعلونه په مکرر ډول راوړي، لکه: (بختیار په پښتو سندرې کړېنه، اوښې تویوینه، خدای ته نارې کړېنه، غلبلې کړي، پاړکي لرینه) په یوه کرښه کې پنځه فعله سره یوځای شوي دي، دوه یې کټ مټ تکرار شوي دي.

۹_ دغه نثر که څه هم مسجع نه دی، خو لکه د نورو ژبو پخواني نثرونه کله کله وزن لرونکي او مسجع کلمات لري. د فعلونو په پای کې یې یو (نه) د وزن او ترنم لپاره نښلولی دی.

پروفیسر افضل رضا د دغه کتاب په اړه لیکي: ((سلیمان ماکو د خپل دور په تذکره لیکوالو کې داسې لار اختیار کړه چې یو خوا دا د هغه وخت د پښتنو روحاني مشاهیرو تاریخ دی، بل خوا د ادبي رجالو د ادبیاتو تاریخ دی. د تذکرې د لیکلو په وخت سلیمان هم پوخ مؤرخ دی، هم ښه تذکره نګار. دا تذکره اول کې د تصوف کتاب نه، بلکه د شعر او ادب ګران بها مجموعه ده.))

د متن لنډیز:

سلیمان ماکو د پښتو د لرغوني ادب یوه ځلانده څېره ده. نوموړي د ((تذکرة الاولیاء)) په نوم په پښتو نثر یو کتاب لیکلی دی چې د پښتنو شاعرانو او اولیاوو د ژوند حالات او د کلام نمونې یې پکې راغونډې کړې دي. د پښتو نثر لومړنی لاس ته راغلی

کتاب دی چې په (٦١٢هـ) کې کښل شوی دی. له دې څخه پخوا د پښتو نثر د یو بل کتاب یادونه په ((پټه خزانه)) کې شوې ده چې د ((سالو وږمه)) نومېږي او لیکوال یې ابو محمد هاشم سرواني (٢٢٣- ٢٩٧هـ) دی. د هغه کتاب یوازې نوم تر موږه رارسېدلی دی او خپله کتاب ورک دی.

د سلیمان ماکو د تذکرة الاولیاء د کتاب یوازې لومړني اووه مخه پیدا شوي او خپاره شوي دي. د دې کتاب نثر روان، خوږ او په زړه پورې دی، د پښتو نثر په تاریخ کې دغه کتاب د ځانګړې ارزښت لرونکی دی.

## فعالیتونه

١ـ زده‌کوونکي دې د ښوونکي دغو پوښتنو ته ځوابونه ووایي:

ـ په تذکرة الاولیاء کې د کومو اولیاوو او شاعرانو د ژوند حالات او د کلام نمونې راغلې دي؟

ـ تذکرة الاولیاء په پښتو ادب کې څه ارزښت لري؟

ـ له تذکرة الاولیاء څخه د مخه په پښتو ژبه د نثر کوم بل کتاب پېژنئ که نه، که یې پېژنئ وواياست چې چا لیکلی او د کتاب نوم څه دی؟

٢ـ په دغو څلورو ځوابونو کې یو یې سم دی، سم ځواب په نښه کړئ:

الف: د سلیمان ماکو په تذکرة الاولیاء کې یوازې د اولیاوو او علماوو ژوند پېښې راغلې دي.

ب: په تذکرة الاولیاء کې د اولیاوو او شاعرانو ژوند پېښې او د کلام نمونې راغلې دي.

ج: په تذکرة الاولیاء کې یوازې د نثر لیکونکو او شاعرانو ژوند پېښې او د کلام نمونې راغلې دي.

د: په تذکرة الاولیاء کې د شپږو تنو شاعرانو او اولیاوو ژوند پېښې او د کلام نمونې راغلې دي.

۳ـ زده‌کوونکي دې دغه لغتونه پر تختې وليکي او له ټولګيوالو څخه دې يو تن هغه په يوه مرکبه جمله کې وکاروي:

مرقد، متانت، شهکار، مسجع، تذکره نګار

٤ـ د دې لوست ټول (قيدونه) دې هر څوک په خپله خپله کتابچه کې وليکي او هر زده‌کوونکی دې دوه دوه قيده ټولګيوالو ته ولولي.

٥ـ څو تنه زده‌کوونکي دې په خپل خپل وار د سليمان ماکو د نثر يوه يوه ځانګړنه په لنډه توګه ووايي.



## کورنۍ دنده

د سليمان ماکو د نثر د ځانګړتياوو په اړه په لنډيز سره يو څه وليکئ او سبا ته به يې د ښوونکي په انتخاب د څلورو تنو ليکنې ټول ټولګيوال واوري.

حکايت:

نوشيروان چې په عدل او انصاف مشهور و، يوه ورځ ښکار ته وتلی و ، څه يې وژلي وو. کباب يې کاوه. مالګه نه وه. خدمتګار يې کلي ته واستاوه چې ورشه مالګه په بها راوړه چې بد رسمي ونشي، کلی به خراب شي. چا وويل: په دا هومره مالګه راوړل به څه خرابي کېږي؟

ده وې: بنياد د ظلم اول لږ و، هر څوک چې حاکمان کېدل، په وار وار يې زياتاوه، تر دې حده ورسېده.

قطعه

که باد شاه د چا له باغه شفتالو په ظلم وخوري ... د باغ ونې به له وېخه وکاږي د ده مريونه

که ستم په يوه هويه د غريب بادشاه روا کا ... سپاهيان به يې چرګان د رعيت کا په سيخونه

د عبدالقادر خان خټک ((ګلدسته))

(د ګلستان پښتو ژباړه)





# پښتو ولسي ادبيات

ولسي ادبيات د يو ملت د فولکلوري ميراثونو يوه ډېره مهمه برخه ده. تاسو په تېرو ټولګيو کې د پښتو په ځينو لوستونو کې د ولسي ادبياتو د ځينو ډولونو، لکه: لنډيو، متلونو او ځينو نورو په اړه يو لړ مطالب لوستي دي. په دې لوست کې به د ولسي ادبياتو په اړه بشپړې خبرې وکړو او مهمې برخې به يې تاسو ته در وپېژنو.

پښتو ولسي ادبيات زموږ د غرونو، رغونو، کېږدیو، کورونو، جونګړو، کلیو، دېرو او حجرو د غږونو، هیلو او ارمانونو انګازه ده. له همدې امله ولسي ادبيات د يو ملت د هیلو او ارمانونو د رازونو ساتونکي ګڼل شوي دي.

که موږ ادبيات په دې لوست کې په دوو عامو څانګو ووېشو، نو دغه دوه څانګې یې (لیکلي یا تحریري ادبیات) او (نا لیکلي یا ولسي او شفاهي ادبیات) دي. په لیکلي ادب کې هغه لیکلي او دیواني ادبیات راځي چې په وخت د ځانګړو لیکوالو یا شاعرانو او ناظمانو په قلم لیکل شوي او په دیواني او کتابي بڼه تر موږه رارسېدلي دي.

شفاهي یا ولسي ادبيات بیا د هغه ولس غږ دی چې له لیک لوست څخه لرې پاتې شوی دی او دغه سندرې چې په حقیقت کې د خلکو سندرې دي او د ولس ادبيات دي، سینه په سینه په شفاهي بڼه د پښتنو د تاریخي ولسي میراث په توګه تر دې دمه رارسېدلې او یوه برخه یې د راټولوونکو او د فولکلور د څېړونکو له خوا راټوله شوې ده.

((د خلکو سندرې)) نومي کتاب لیکي:

((د خلکو ادبيات په عمومي توګه په دوو برخو وېشلی شو چې لومړۍ برخه یې د خلکو سندرې (منظوم ادب) او دویمه برخه یې د خلکو روایات، امثال (متلونه) افسانې او نور (منثور ادب) تشکیلوي.))

انګرېز مستشرق راورټي ډېر پخوا د پښتو سندرو په اړه ویلي وو: ((پښتانه که څه هم ورځپاڼې او خپرونې نه لري، خو هغه ساده او عامیانه اشعار او بدلې چې په عام ډول د پښتنو د هرې طبقې له خوا ویل شوي، د دوی تاریخ او ورځپاڼې بلل کېدای شي.))

پښتانه ډېر غني ولسي ادبيات لري. د غرونو، درو او سردرو دغه اوسېدونکي د ولسي ادبیاتو ډېرې غوره نمونې لري. د نړۍ ډېر لږ ولسونه به د پښتو له ولسي ادبیاتو سره د سیالۍ جوګه وي.

څېړونکو د پښتو د ولسي ادب منظومه برخه هم په دوه ډوله وېشلې ده: یوه برخه یې (عامې سندرې) او بله برخه یې (ځانګړې یا خاصې سندرې) دي. د لومړۍ برخې ویناوال څرګند نه دي او په ټول ولس پورې اړه لري، خو د دویمې برخې ویناوال یې څرګند دي او

هغه ولسي شاعران دي. په عامو سندرو کې دغه بېلابېلې برخې شاملې دي:

د مینډو سندرې: لکه اللو للو، پیشو- پیشو مه راځه د غرو (پلانکی) جان داسې ویده دی لکه ګوډی د رنجو. یا منظوم چیستانونه، د ماشومانو سندرې، د وړو مشاعرې، کیسۍ، د لوبانو سندرې، د اتڼ نارې، بابولالې، لنډۍ یا ټپې، سروکي، منظوم متلونه، د هوتکو نارې، کاکړۍ (یا د کاکړو غاړې) ساندې او نور...

په ځانګړو یا خاصو سندرو کې دغه برخې راځي:

مقامونه، چاربیتې، بدلې، بګتۍ، لوبې، کیسې او داستانونه او یو شمېر نور...

((د خلکو سندرې)) د کتاب لیکوال د دغو سندرو د ارزښت په اړه وایي چې د پښتو دا سندرې هم له ډېر پخوا څخه شروع شوې دي. دا سندرې د پښتو د هغو پخوانیو اشعارو زېرنده ده چې له اریایي شعرونو سره د موضوع او بڼې له مخې ټینګې اړیکې لري، لکه د امیر کروړ شعر، د بیټ نیکه دعا، د بابا هوتک سندره او نور... دا سندرې زموږ د ملي ادب یوه ستره برخه ده. په دغو سندرو کې پښتني حماسه او غیرت، دود او دستور، خیالونه او فکرونه او د پښتنو روحي ځانګړنې رامعلومېږي. د دغو سندرو تشبیهات او استعارې او د افادې ډول، خیال او تصور د پښتو په ولسي او عامیانه ژبه پورې اړه لري او ټول د ولسي او عامیانه ژوند تفسیرونه او تعبیرونه دي. موږ ته له داسې سپېڅلو او خوږو سندرو څخه خبرېدل هرومرو پکار دي.

د پښتو په ولسي سندرو کې چاربېتې ځانګړی مقام لري. چاربیتې د ولسي ادبیاتو د منظومې برخې په خاصو یا ځانګړو سندرو کې شمېرل کېږي چې شاعران یې معلوم دي. چاربېتې په بېلابېلو تاریخي، حماسي، دیني، عشقي او نورو موضوعګانو کې ویل شوي دي. تاریخي او حماسي چاربیتې په دغه لړ کې ځانګړی تاریخي ارزښت لري او په حقیقت کې د تاریخ لپاره ترې مواد برابرېږي. د تاریخي چاربېتو یوه برخه فرانسوي ختیځ پوه ((ډارمستېټر)) هم خوندي کړې او ((د پښتونخوا د شعر هار و بهار)) په نوم یې ډېر کلونه پخوا چاپ او خپره کړې ده. همدارنګه د ((تور برېښ)) د کتاب لیکوال هم یو شمېر مهمې تاریخي چاربیتې راټولې او خپرې کړې دي، د ولسي سندرو په یو شمېر مجموعو کې هم

دغه ډول چاربیتې وخت په وخت چاپ شوې دي.

د دغو ادبیاتو په اړه د تور برېښ په سریزه کې پوهاند صدیق الله رښتین لیکي:

... په دې سلسله کې ټپه یا لنډۍ د پښتو شاعرۍ تر ټولو پخوانۍ نمونه ده چې د پښتون ولس ډېر لرغوني، پاک او سپېڅلي احساسات پکې په یو اغېزناک او ښایسته ادبي رنګ کې ساتل شوي دي.

په لنډیو پسې وروسته نیمکۍ، بګتۍ، چاربیتې او لوبې د ولسي شاعرۍ د ادبي خزانې یوه لویه پانګه ده. په دغو ډولونو کې چاربېته تر ټولو زیاته پراخ او خوندور ډول دی.

نومیالی فرانسوي ختیځ پوه ډارمستېټر وایي چې چاربېته د پښتنو یو لیکلی تاریخ دی. د دوی د جنګونو او غزاګانو تاریخ په چاربیتو کې نغښتی دی.

له بده مرغه چې ډېرې پخوانۍ چاربیتې له خپلو ویونکو سره یوځای تر تورو خاورو لاندې شوې دي او څه زیاته پانګه یې لاس ته نه ده راغلې. څومره چې ښکاره ده چاربیتې زیاتره د نالوستو خلکو له خوا ویل شوي دي، خو ځینې اخوندان او ملایان هم پکې ډېره لویه برخه لري.

د ((تور برېښ)) د کتاب لیکوال د دغو ولسي سندرو د راټولولو او خوندي کولو اهمیت په دغو ټکو کې څرګندوي:

۱ــ زموږ د تاریخ ډېرې پټې او نامعلومې پېښې او د دغو پېښو قهرمانان موږ ته معلومېږي او د ملي تاریخ له لیکوالو سره مرسته کوي.

۲ــ زموږ د ادب ډېره قیمتي برخه له ورکېدو او تباه کېدو څخه خوندي پاتې کېږي.

۳ــ د داخلي او خارجي ادب څېړونکو، ژبپوهانو او د کلتور او ملي فولکلور د پلټونکو لپاره د استفادې وړ مواد لاس ته راځي.

٤ــ شاعرانو ته ډېر ښکلي او ښایسته آهنګونه په لاس ورکوي چې خپل نوي فکرونه پکې واچوي.

٥ــ له ولس او عامو لوستونکو سره د ملي احساساتو په روزلو کې مرسته کوي.

تاریخي چاربیتې د ولسي سندرو ډېره غوره برخه ده. دا د رښتیني تاریخ د لیکلو لپاره د مهمو خامو موادو په توگه پوره ارزښت لري.

د دغو تاریخي او حماسي چاربیتو زیاته برخه د افغان ـ انگلیس د بېلابېلو جگړو ځینې اړخونه موږ ته راڅرگندوي. فرانسوي جیمز ډارمستېټر د افغان انگلیس د جگړو دغه تاریخي چاربیتې خوندي کړي دي. دغه راز یو زیات شمېر دغه ډول ولسي سندرې په ((پښتو سندرې))، ((تور بریښ))، ((ولسي سندرې)) او نورو آثارو کې خوندي شوې دي.

له دغو چاربېتو څخه ((د ډکې غزا)) په نوم د افغان- انگلیس د دریمې جگړې یا د خپلواکۍ د جگړې یوه مشهوره چاربیته د ولسي نامتو شاعر د لالپورې شریف له خوا ویل شوې ده چې یوه برخه یې د بېلگې په توگه دلته راوړو.

لــه هندوســتانه کاغذونــه راغلــه
نــن مــې جگــړه ده لــه کفاره ســره

امیــر صاحــب تــه پریادونــه راغلــه
بېلتــون مې نــه پرېږدي له یاره ســره

* * *

امیــر صاحب د جنــگ اختیار وکړ
ســپه ســالار یــې مقــرر کړلــو
ســپه ســالار وتــاړه لام وریســې
پــوځ یــې کــم میخزیــن یــې ډېــرو
پــه ښــکارغلي پلټنــې پرېوتلــې
ورځ د جمعې وه چې جازونه راغله
یــو څوگولۍ یې کــړې گوزار خلکه
مړي زخمیان پراته بې شــماره ســره

د غــزا نیــت یــې پــه تلــوار وکــړ
پــروت په ډکه ټینگ یــې خیبر کړلو
پــه هــره ورځ راتــه گــودام وریســې
خلکــه حســاب لــه حــده تېــر و
لــه انگرېزانــو ســره کښــېوتلې
امیــر صاحــب تــه پریادونــه راغلــه
پــه ډکه یې جوړ کړ دنــدوکار خلکه
نــن مــې جگــړه ده لــه کفاره ســره

* * *

سپه سالار يوه چره وخوره        خلکه په پونده يې خره وخوره
په ستنه سپور شو په موټر باندې        پوځ يې پرېښود په خيبر باندې

ولسي سندرې د موضوع له پلوه په بېلابېلو برخو وېشل شوې دي. د ((ولسي سندرې)) ښاغلی مؤلف يې په دغو برخو وېشي: تاريخي سندرې، جغرافيايي سندرې، قصصي سندرې، اجتماعي او انتقادي سندرې، ټوکي سندرې، وعظيه او اخلاقي سندرې، اړونه او ((تقابلي سندرې)) ويرنې، د مينې سندرې د عشق او محبت سندرې.

د ولسي ادبياتو له منظومې برخې څخه چې راتېر شو، منثوره برخه يې هم د پاملرنې وړ ده. په منثوره برخه کې يې متلونه، ولسي نکلونه، حکايتونه، افسانې او نور شامل دي.

په پښتنو کې د ولسي نکلونو او کيسو ډېرې په زړه پورې نمونې شته دي. په دغو کيسو کې هم، لکه: د لنډيو او متلونو په څېر د پښتنو د ژوند، هيلو، غوښتنو او ارمانونو انعکاس په ډېره ښه توګه ليدلی شو. موږ په دغو کيسو او نکلونو کې د خپل وخت د پښتنو د ژوند، فکر او نظر، هنر او نورو خواوو ښه مطالعه کولی شو.

په ملي هنداره فولکلوريک اثر کې د دغو ولسي پښتني نکلونو ځينې بېلګې ارواښاد محمد ګل نوري خوندي کړې دي، لکه: فتح خان او رابيا، ښادي او بيبو، مرد او نامرد، زبزبانه ښاپېرۍ، موسی جان او ولي جان (يا موسی خان او ګلمکۍ)، مومن خان او شيرينو، جلات خان او شمايله، ملا عباس او ګلبشره، ظريف خان او مابۍ، خشکيار او شاترينه، قطب خان او نازو، دلی او شهو او آدم خان او درخانۍ.

د پښتو دغه ولسي کيسې لا تر اوسه پورې د ولس په سينو او حافظو کې پرتې دي او له بده مرغه په پوره ډول راټولې شوې نه دي، يوازې يوه کوچنۍ برخه يې راټوله شوې ده. له همدې کبله ښايي ډېرې دغه ډول کيسې او نکلونه هم د راويانو له مړينې وروسته له خاورو سره خاورې شوې وي.

موږ ته لازمه ده چې د خپلو ولسي او فولکلوریکو ادبیاتو دغو ټولو برخو ته پوره غور وکړو او د ډېر مهم کلتوري میراث په سترګه ورته وګورو. د دغو ارزښتناکو کلتوري میراثونو راټولول، څېړول او پرې څېړنې کول د یو ملت د فولکلوریکو ولسي پانګو د خوندیتوب په معنا دی. له دغو راټولونو او څېړنو به اوسني او راتلونکي نسلونه د دې ولس د ژوند دود، رواجونو، فکر او نظر، تاریخ، کلتور او ادب په هکله معلومات ترلاسه کوي او څېړونکي به ترې د دې ولس د ژوند او ژواک په اړه نوي نوي ټکي راباسي او د دې ولس په ښه پېژند کې به ترې ګټه اخلي.

د متن لنډیز:
ولسي ادبیات، د فولکلور او د یو ملت د کلتوري میراثونو ارزښتناکه برخه ده. په ولسي ادبیاتو کې منظومه او منثوره برخه شامله ده. په منظومو ولسي ادبیاتو کې عامې او خاصې سندرې دواړه د پاملرنې وړ دي. په عامو سندرو کې دغه برخې شاملې دي. د میندو سندرې، د ماشومانو سندرې، د اتڼ نارې، بابولالې، لنډۍ، سروکې، منظوم متلونه، د هوتکو نارې، کاکړۍ، ساندې او نور.
خاصې سندرې دا دي: مقامونه، چاربیتې، بدلې، بګتۍ، لوبې، منظومې کیسې او داستانونه او نور... په منثوره برخه کې یې: متلونه، ولسي نکلونه او حکایتونه او نور ډېر د ارزښت وړ دي.

## څرګندونې

**فولکلور**: یوه لاتیني کلمه ده چې له فولک (خلکو یا ولس) او (لور یا پېژندنې او پوهنې) څخه جوړه ده. له همدې امله فولکلور ته ولسي پوهه هم وايي، فولکلور په خپله ځولۍ کې د یو ولس دودونه، رواجونه او عنعنې، انګیرنې او نظرونه، ولسي ادبیات او نور

ډېر ولسي میراثونه رانغاړي.

**د تاریخ لپاره خام مواد:** په دې لوست کې د تاریخ د لیکلو لپاره خام مواد یاد شوي دي. موخه مو ترې دا ده چې کله یو مؤرخ تاریخ لیکي، نو سندونه، مرکې او مصاحبې، فلمونه او تصویرونه ورته د خامو تاریخي موادو په توګه مهم دي چې راټول یې کړي او د همدغو سندونو په رڼا کې د یوې ځانګړې دورې تاریخ ولیکي، دغه تاریخي چاربیتې چې د هماغه وخت د سترګو لیدلي حالات دي، د یوې دورې په تاریخ لیکنه کې د خامو موادو په توګه تاریخ لیکونکي (مؤرخ) ته مهمې دي او پوره ګټه ترې اخیستلی شي.

**جیمز ډارمستېټر:** مشهور فرانسوي ختیځ پوه دی. په ۱۹ عیسوي پېړۍ کې اوسېده. د پښتو تاریخي او حماسي چاربیتې یې د ((پښتونخوا د شعر هار و بهار)) کتاب کې راټولې کړې او چاپ کړې دي. د پښتو او پښتنو په اړه یې نورې څېړنې هم کړې دي چې د ختیځ پوهانو په بحث کې مو درېږندلي دي.

د لالپورې شریف: د ننګرهار د لالپورې نامتو ولسي شاعر و.

امیر صاحب: غازي امان الله خان

سپه سالار: د ختیځې جبهې قوماندان، سپه سالار صالح محمد خان

لام: لښکر، پوځ

ښکارغلی: په خیبر کې یوه سیمه ده

میخزین: وسله، تدارکات

## فعالیتونه

۱ــ زده‌کوونکي دې د ښوونکي دغو پوښتنو ته په خپل خپل وار ځوابونه ووايي:

- فولکلور څه ته وايي؟
- ولسي ادبیات په کومو کومو څانګو وېشل کېږي؟

- چاربیتې د ولسي ادبیاتو کوم ډول دی او کومې ځانګړنې لري؟
- ولسي سندرې د موضوع له پلوه په کومو کومو برخو وېشلی شو؟
- فرانسوي ختیځ پوه جیمز ډارمستېټر په خپل کوم کتاب کې کوم ډول چاربېتې راټولې کړې او خپرې کړې دي؟

۲ــ زده‌کوونکي دې (په انتخابي توګه له هر کتاره یو یو تن) په وار سره د خپلو ټولګیوالو مخې ته ودرېږي او یو یو تن دې د دې یوې یوې موضوع په اړه خبرې وکړي:

- په پښتو کې د ولسي ادب ارزښتونه
- پښتو لنډۍ په کوم ډول ادبیاتو کې راځي او کوم مقام لري؟
- د پښتو د ولسي سندرو یا د ولسي ادب د منظومې برخې ډولونه
- د پښتو منثور ولسي ادبیات

۳ــ یو یو زده‌کوونکی دې په خپله خوښه د دې لوست د یوې یوې اصطلاح په اړه توضیحات وغواړي، یو زده‌کوونکی دې په خپله خوښه د دې کلمو، موضوعاتو او یا اصطلاحاتو په اړه لنډ لنډ ځوابونه ورکړي. یو څو اصطلاحات یا موضوع ګانې دادي:

الف: تحریري یا لیکلي ادبیات

ب: نا لیکلي یا شفاهي ادب

ج: فولکلوري میراث

د: تاریخي چاربیتې

هـ: ولسي نکلونه

نور اصطلاحات او نورې موضوع ګانې دې شاګردان په خپل لټون سره له متن څخه راوباسي او له نورو ټولګیوالو څخه دې د هغو د معنا او مفهوم په هکله پوښتنې وکړي.

٤ــ زده‌کوونکي دې لکه د یوې کوچنۍ مباحثې یا خبرو اترو په توګه په ادبیاتو کې د (استعارې)، (تشبیهاتو)، (خیال) او (فکر) په اړه په خپلو کې په نوبت سره منظمې خبرې وکړي. دوه تنه شاګردان دې دغه جریان د ښوونکي تر نظارت لاندې وڅاري او بیا دې

همدغه دوه تنه شاګردان د ټولو ټولګیوالو نظرونه راغونډ کړي او د دغو ګډو خبرو اترو ارزونه دې وکړي.



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د خپلې سیمې او شاوخوا کوم ولسي شاعر په لنډیز سره معرفي کړي او یا دې د کوم ولسي شاعر کوم شعر یا کومه ولسي سندره یا ولسي نکل په کلي - کور کې له چا څخه ولیکي او ټولګي ته دې یې له ځانه سره راوړي. په راتلونکي درسي ساعت کې دې یې ټولګیوالو ته واوروي. ښوونکی به دغه ټولې لیکنې او د ولسي شعرونو نمونې له ځانه سره خوندي کړي، که نوې څېړه پکې وه چې تر اوسه په مطبوعاتو کې نه وي معرفي شوي، د همدغه زده‌کوونکي په نوم دې کومې مجلې یا جریدې ته د چاپ لپاره واستوله شي.

په لوړو غرو د خدای نظر دی
په سر یې واورې وروي چاپېر ګلونه
په اصل خوک نه سرې کېږي
سرې هغه دی چې یې خوی د سړو وینه
په پټ کې تور مسلې ښه دی
بې پته یار که شهزاده شي څه یې کړمه





# د ښکارندوی بولله



ـ په پښتو کې موکومه بولله یا قصیده اورېدلې ده؟

ـ د لرغوني پښتو ادب څومره شاعران پېژنئ؟

په پښتو لرغوني ادب کې د ښکارندوی بولـلـه (قصیده) ډېر شهرت لري.

تاسو د پښتو د نورو ټولګیو په لوستونو کې د لرغوني ادب په هکله ډېر څه لوستي دي. دادی په دې لوست کې د ښکارندوی دغه ارزښتناکه بولله یا قصیده لولئ او د شاعر په اړه یې بشپړ معلومات ترلاسه کوئ.

ښکارندوی د پښتو لرغوني شاعری یوه وتلې څېره وه. هغه په شپږمه هجري پېړۍ کې په غور کې اوسېده. محمد هوتک په پټه خزانه کې د هغه د ژوند لنډ حالات لیکلي او د هغه بولله یې په خپل کتاب کې رانقل کړې ده. په ((پټه خزانه)) کې د هغه په اړه لولو:

((ذکر د ښکارندوی علیه الرحمه چې د غور و. پوه شه په دې چې شیخ کټه متي زي رحمة الله علیه کښلي دي، په کتاب ((لرغوني پښتانه)) کې چې ((په تاریخ سوري)) کې دي چې ښکارندوی مېشته د غور و او کله کله په غزنه او بُست کې هم اوسېدلی. پلار یې احمد نومېد او د غور د فېروز کوه کوټوال و. ښکارندوی د سلطان شهاب الدّنیاوالدّین محمد سام شنسباني په پادشاهی کې مخور او د درناوي خاوند و او هغه وخت چې هغه سلطان پر هند یرغل کاوه، ښکارندوی چې شاعر او عالم سړی و، هم د هغه سلطان په لښکر کې و او هسې وایي چې ښکارندوی په مدح کې د سلطان محمد سام او سلطان غیاث الدین غوري د ستاینې قصیدې لري چې بوللې دي. محمد ابن علي وایي چې ما په بُست کې د ده د بوللو غټ کتاب ولیدئ او له هغه څخه مې دغه بولله چې د محمد سام علیه الرحمه ستاینه ده، وکښله.))

په پټه خزانه کې د ښکارندوی راغلې بولله (قصیده) دا ده:

د پسرلي ښکلوونکي بیا کړه سینګارونه
بیا یې ولونل په غرونو کې لالونه
مځکه شنه، لاښونه شنه، لمنې شنې شوې
طیلسان زمردي واغوستە غرونه
د نیسان مشاطې لاس د مچېدو دی
مرغلرو باندې وښکلل بڼونه
د غټولو چنډې خاندي و ریدي ته
زرغونو بڼوکې ناخي زلمي جونه
لکه ناوې چې سور ټیک په تندي وکا
هسې وګاڼل غټولو سره پسولونه

مرغلرې چې اورو وخونو لیه
په ځلا یې شوه راڼه خپاره دښتونه
زرغونو مځکو کې ځل کا لکه ستوریه
چې پر هسک باندې ځلېږي سپین ګلونه
سپینې واورې ویلېده کاندي بهېږي
لکه اوښې د مین په ګرېوانونه
هر پلو رڼې والې بهاندې خاندي
له خوښیه سر وهي له سینګرونه
هر پلو د ګلو وږم دی لونلی
ته وا راغله له ختنه کاروانونه
د مسیح په پو به مړو ژوندون بیامونډ
پسرلی مګر مسیح شو په پوکړنه
له مړو خاورو یې آغلی ګل راویوست
وچ بیدیا او غر یې کړله جنتونه
سړی جاجي چې رامشت کړ رامشتګرو
ګهیځ چوڼې چې په بڼ وکا ږغونه
په بربڼ چې ږغ د چوڼیو نغوږېده شي
ته وا چندی سره پیودي اشلکونه
د زلما ټاپی راغلی پر جنډیو
لکه پېغله غوټی کاندي مکېزونه
د پوپلو مخ سور کړی پسرلي دی
یو د بل په غاړه اچوي لاسونه
د هندارو په څېر غرونه سپین ورنګن دي
چې پر واورو باندې ځل وکا لمرونه

په غورځنګ غورځنګ له خولې ځګونه باسي
لکه شڼ هاتي شنها کاندي سیندونه
نه به چوڼې په ستایه د جنډو مور شي
نه به مور شم د سلطان په صفتونه
د شنسب د کهاله ختلی لمر دی
د پسرلي په دود ودان له ده رغونه
د ښندو اورو يې درست ایواد زرغون کړ
له قصداره تر دیبله يې یونونه
په زابل چې د بري پر نیلي سپور شي
په لاهور يې د مېړانې ګوزارونه
نه يې څوک مخ ته دري د میرځمنو
نه يې تورې ته ټینګېږي کلک ډالونه
د اسلام د دین شهاب د نرۍ لمر دی
تور ستهان يې کړ رڼا په جهادونه
هره پلا چې دی پر هند و سند یرغل کا
رڼوي توره نرۍ په شهابونه
په پسرلي چې يې تېرون په اټک وکا
غاړه غاړه يې تری شولله زړونه
نه به ده غونډې روڼ ستوری په هسک ځلي
که څه پورته شي له غوره ډېر مېړونه
نه به راولي جګړن د سیند په لورې
نه به بري څوک د هند خپاره ښهرونه
نه به څوک زلمي د غور سره راغونډ کا
د داور تورې به چېرې کا ځلونه

يو خاوند شهاب الدين دی چې يې وکا
په هر لوري هر اړواد ته يرغلونه
په جوپو جوپو جګړن يې هند ته يون کا
چې د غور بادار همت وکا زغلونه
نن په سيند باندې تېرېږي يرغل کاندي
په پرتم يې زمري ربړدي په ځنګلونه
خپان سيند يې هم له ډاره ايلايي کا
پر اوږو وړي د غوريانو ښه ايرونه
په هر کال اټک د ده ښه راغلی کاندي
غوروي په خندو خپل پاسته سالونه
پښتونخوا ښکلي ځلمي چې زغلي هند ته
نو آغليه پېغلې کاندي اتڼونه
زرغونې ختې اخيستې وي دې غرونو
بڼ بيديا هم پسوللي دي ځانونه
هرګهيځ چې لمر خرکېږي له خاتيځه
خو چې يون کا د لويديځيه په خندونه
که بريځر وي، که غرمه وي، که برمل وي
که لرمل، که لمر لوېده، که ترملونه
د شهاب جګړن به نه کښېني له زغلو
نه به پرېږدي دا زلمي خپل بهيرونه
زمری کله کاږي ځان له يرغلګريو
خو يې نه کا مات متونه ورمېږونه
يا به جګ کا د بريو ربی هند کې
يا به پرېږدي هم په دې چاره سرونه

یا به وران کا بودتونونه د بمبښو
یا به سره کاندي په وینو ایوادونه
په رڼا اوسې ته تل د دین شهابه
نوم دې تل و پر دریغ په نمزدکونه
څو راڼه شي ستا په توره د هند لوریه
څو چې نشت کړې له نرۍ نه بودتونونه
ستا په زېرمه دې خاونده لوی ښتن وي
مورږ څو ستا په مرسته یو نه څو چې یونه

د پښتو ادبیاتو په تاریخ کې د دې قصیدې په هکله ښه بحث شوی دی او داسې لیکل شوي دي.

د ښکارندوی دا قصیده د پښتو ادب یو شهکار دی او د شاعر مهارت او استادي او د قریحې غښتلوالی او سپېڅلتوب څنې ښکاري. لومړی مزیت چې په دې قصیده کې لیدل کېږي، د کلام سلاست، بلاغت او رواني ده. شاعر په ډېر مهارت خپل مقصد په ساده عبارت ادا کوي. ډېر پښتو نادر لغات او مواد پکې شته، دا لغات موږ ته دا راښیي چې پښتو خورا پراخه ژبه وه او اوس یې ډېر پخواني کلمات له رواجه لوېدلي دي، لکه: ختیځ، لویدیځ، لرمل، برمل او نور... ښکارندوی چې په دې قصیده کې د پسرلي کوم ښکلی منظر تصویر کړی دی، د وطن له ښکلیو دښتو او غرو څخه یې الهام اخیستی دی. له دغې بوللې څخه چې د ښکارندوی له دیوانه پاتې ده، موږ ته رامعلومېږي چې شاعر د ادبي فنونو او بلاغت په اساسونو کې هم پوخ و او د ده شعرونه له ښکلو تشبیهاتو او استعارو ډک دي.

د متن لنډیز:

ښکارندوی د غور اوسېدونکی و او د پښتو د لرغوني شاعرۍ یوه مخکښه څېره ده. په شپږمه هجري پېړۍ کې د سلطان شهاب الدين غوري په واکمنۍ کې یې د درناوي مقام درلود او هلته پوره مخور و. له دیوان څخه یې یوازې یوه بولله (قصیده) د پټې خزانې په روایت تر موږه رارسېدلې ده.

دغه (٤٥) بیتیزه قصیده ډېره پخه او په روانه او خوږه پښتو ویل شوې ده. شاعر پکې د هغه وخت ډېر داسې لغتونه خوندي کړي دي چې اوس یې خلك نه کاروي. له دې کبله د پښتو د معنوي ذخیرې او پانګې له مخې هم موږ ته ډېره ارزښتناکه ده. د ادبي فنونو او ښکلاوو له مخې هم دغه بولله د ډېرې ستاینې او ارزښت وړ ده.




لرغوني پښتانه: دغه کتاب د پټې خزانې په روایت د شیخ کټه په قلم لیکل شوی دی. پټې خزانې له دغه اثر څخه ډېره استفاده کړې ده. په دې کتاب کې هغه په ډېر درناوي یادېږي، لکه: ((نقل کا زبدة الواصلین شیخ کټه متي زی غوریاخېل په خپل کتاب ((لرغوني پښتانه)) کې چې دی نقل کا له ((تاریخ سوري)) څخه...)) دغه کتاب اوس ورك دی.

تاریخ سوري: ((تاریخ سوري)) هم هغه کتاب دی چې د پټې خزانې د روایت له مخې ترې په ((لرغوني پښتانه)) نومي کتاب کې ډېره استفاده کړې ده. لیکوال یې محمد بن علي البستي و. دغه کتاب هم اوس ورك دی.

سلطان محمد سام شنسباني (سلطان شهاب الدين) له **٥٦٩** څخه تر **٦٠٢** هـ.ق. پورې د غور او شاوخوا پاچا و چې په معز الدين هم مشهور و او ښکارندوی یې په دربار کې مقرب او د درنښت وړ و. د هند په فتوحاتو کې هم ورسره و، دغه بولله یې هم د هغه په ستاینه کې ویلې ده.

سلطان غیاث الدین غوري: دی هم د غوري سلسلې واکمن و او ویل کېږي چې ښکارندوی یې ستاینه کړې ده، خو هغه غزلې اوس زموږ په لاس کې نشته.

قصدار: اوس دغه سیمه په بلوچستان کې واقع ده او خضدار یې بولي.

دیبل: دغه سیمه اوس د سند په وادي کې پرته ده او هلته یوه سمندري بندرګاه وه.

داور: د زمینداور سیمې دي چې دلته یوازې د داور په بڼه راغلی دی.

## فعالیتونه

۱ـ زده‌کوونکي دې د ښکارندوی بولله په چوپه خوله او دقت له ځانه سره ولولي. ستونزمن لغتونه او بیتونه دې له ځانه سره یادداشت کړي. بیا دې په نوبت یو یو زده‌کوونکی خپل ستونزمن لغتونه یا بیتونه خپلو ټولګیوالو ته په لوړ غږ ووایي. د ټولګي له منځ څخه دې بل زده‌کوونکی په خپله خوښه ځواب ورته وایي. که په ټولګي کې هیڅ د ستونزمنو برخو ځواب پیدا نه کړای شو، ښوونکی به یې ستونزې حلوي.

۲ـ د ښکارندوی د بوللې درې درې بیتونه دې په لوړ غږ د یو یو کتار زده‌کوونکي په نوبت سره ووایي، نور به ورته غوږ غوږ وي.

۳ـ زده‌کوونکي دې دغو پوښتنو ته ځواب ووایي:

- ښکارندوی د کوم واکمن په ستاینه کې شعرونه لیکلي دي؟
- نور کوم مشهور قصیده ویونکي پېژنئ، نمونه یې واخلئ.

## کورنۍ دنده

د ښکارندوی دغه بولله یو ځل بیا په خپلو کورونو کې په دقت ولولئ او په اړه یې دوه مخیزه لیکنه وکړئ. په بله ورځ یې خپلو ټولګیوالو ته واوروئ.

# په شعر کې قافیه




تاسو د تېرو ټولګیو په پښتو او دري کتابونو کې د بدیع او بیان د بېلابېلو برخو په هکله یو لړ مطالب لوستي دي. په دې لوست کې تاسو ته (قافیه) په یو څه مفصل ډول درپېژنو.

د پښتو شاعرۍ په چوکاټونو کې په غزل، قصیده، مثنوي او نورو بېلابېلو ډولونو کې (قافیه) د ارزښت وړ برخه ده. یوازې په آزاده شاعرۍ کې دې برخې ته پاملرنه ضرور نه ده. په کلاسیکو او عنعنوي شعري فورمونو یا چوکاټونو کې قافیه ډېره مهمه ونډه لري. دلته پرې خبرې کوو.

مخکې له دې چې د قافيې په اړه خبرې وکړو، دغه غزل ولولئ. په غزل کې به په اټکلي توګه د قافيې لټه وکړئ. وروسته بيا د قافيې په اړه له زده‌کوونکو سره غږېږو.

د کاظم خان شيدا غزل په دې ډول ده:

د شبنم دانه که تخم شي د ګلو
زړه به سوړ په ديدن نه شي د بلبلو

چې يې نشته لکه ګل ښه رخسارونه
څوک به څه کا توري زلفې د سنبلو

په څه شان درته بيان سوې طالع کړم
لکه نمر زما جبين دی د داغلو

معطل په عارضه د شام غريب دی
که مې زړه په حلقه بند شو د کاکلو

د آسمان په شانې تېز د فتنو تېغ کړې
صبح و شام ګرځې ښکاره په سرو منګلو

د دریاب له سرد جوشۍ د حباب زړه چوي
شيدا قطع د اميد بويه له خپلو

په دې غزل کې يوازې قافيه را تر سترګو کېږي. په غزل کې بايد د لومړي بيت (مطلع) دواړه نيم بيتي هم قافيه وي او د نورو بيتونو دويم نيم بيتي ورسره هم قافيه کېږي. په دې غزل کې: ګلو، بلبلو، سنبلو، داغلو، کاکلو، منګلو، خپلو قافيې دي، دې ته د قافيې کلمې هم ويل کېږي. په دې غزل کې له قافيې وروسته، رديف نه تر سترګو کېږي، خو د کاظم خان شيدا په دې بله غزله کې بيا قافيه او رديف دواړه شته دي:

هېڅ نقصان د ساده حسن و جمال نشته
د آفتاب په رخسار هم خط و خال نشته

چې بدل يې په کچکول د مهتاب خوان کړ
اعتماد د زمانې په کمال نشته

نښلولی زمانې په کوم سبب يم
لکه ژبه خود زما پر وبال نشته

د کجل لکۍ يې ګوره شوخې سترګې
په دا هسې خوبۍ شاخ د غزال نشته

هره لار يې اژدها دی جهان نغري
و بورجل ته يې د هر چا مجال نشته

چې ګره يې د کوکب د کار وانه کړه
ولې نه وايې ناخن د هلال نشته

افروخته وي پکې تل د حسن شمع
د خاطر غوندې فانوس د خيال نشته

شيدا ګوره هر طرف ګلګونې اوښې
هېڅ خندا په دا بهار کې امسال نشته

په دې غزل کې: جمال، خال، کمال، بال، غزال، مجال، هلال، خیال او امسال قافیې او ((نشته)) د دې غزل ردیف دی چې په نیم بیتیو کې له قافیې سره نښتی او له قافیې وروسته تکرارېږي. په دې توگه په دغو شعرونو کې قافیه لازمي ده، خو ردیف لازمي نه دی. قافیه او ردیف غزل، قصیدې او نورو ته آهنگ او موسیقیت ورکوي او د وزن په څنگ کې د دوی شتوالي شاعري په سندریز ښایست سنباله کړې ده.

خو قافیه څه ته وايي؟

قافیه هغه یو ډول (یا سره ورته) یا همغږې کلمې دي چې د مصراع په پای کې راځي او تکرارېږي. په قافیه کې مهمه خبره د همغږۍ ده، هغه کلمې چې دغه همغږي پکې مراعت شوې وي، د قافیې کلمې بلل کېږي. په پورتني لومړني غزل کې: گلو، بلبلو، سنبلو، داغلو او نور... په دویم غزل کې: جمال، خال، کمال، بال او نور د قافیې کلمې دي.

د قافیې توري بیا د کلمو هماغه برخه ده چې همغږي جوړوي، په پورتني لومړي غزل کې (لو) او په دویم غزل کې (ال) د قافیې هماهنگه (همغږه) برخه ده او له همدې امله یې د قافیې توري بولي.

د (قافیه) لیکوال په دې اړه وايي:

((قافیه عربي کلمه ده، په لغت کې وروسته ته وايي، په اصطلاح کې هغه علم دی چې د دورونو له وروستیو هم آهنگیو (همغږیو) څخه بحث کوي. یا په بله وینا د بیت د پای کلمه چې شعر وربانديې ختمېږي او اعاده یې په وروستیو بیتونو کې لازمه وي، قافیه بلل کېږي. د نظم اساسي رکن وزن دی او قافیه د شعر اساسي رکن نه گڼل کېږي، بلکې قافیه د نظم یو عارضي رکن دی، ځکه موږ په ډېرو ژبو کې داسې شعرونه گورو چې قافیه نه لري (لکه آزاد او سپین شعرونه)).

د نظم د ((دورونو)) په اړه باید ووایو چې: دور په لغت کې پېر، دوران، حرکت، څرخېدنه، د یوه شي پر خپل ځای حرکت او گرځېدنې ته وايي، په اصطلاح د بیت یا نظم له پیل څخه د لومړۍ هماهنگۍ تر پای پورې یو دور دی، په مصراع او غیر مصراع بیتونو کې دورونه توپیر پیدا کوي.

که د یو بیت هره مسره (نیم بیتي) قافیه ولري، نو دا بیت له دوو دورو څخه جوړ شوی

دی او مصراع بیت دی، که د یو بیت هماغه وروستی مسره قافیه ولري نو دا بیت یو دور لري او غیر مصراع دی. ردیف هم په دور کې راځي. د قافیې او ردیف توپیر په دې کې دی چې قافیه تر پای له همغږو (هم آهنگو) تورو او غږونو څخه جوړه وي او معناییز یووالی نه لري، خو ردیف تر قافیې وروسته په هماغه یوه لفظي او معناییزه بڼه بیا بیا راغبرګېږي. په کلاسیکو شعري چوکاټونو کې قافیه لازمي او ردیف لازمي نه وي، خو د همغږۍ د تکرار او ښکلا لپاره راځي.

((روي)) د قافیې هغه توری دی چې له هغه پرته د قافیې همغږي نه راځي. دا په حقیقت کې د قافیې د همغږۍ د برخې (کلمې) لومړی توری وي.

په لومړني غزل کې (ل) خپلواک توری دی، خو ورپسې نښتی د (و) توری راځي.

د حرکت له مخې روي دوه ډوله دی:

۱ـ مطلق روي: که د روي توری حرکت ولري، مطلق روي ورته وایي.

۲ـ مقید روي: که د روي توری حرکت ونه لري، مقید روي ورته وایي.

هغه قافیه چې ردیف ورپورې نه وي نښتی، مجرده قافیه یې بولي.

د ((قافیه بندۍ)) یا قافیه جوړونې اصطلاح د یو شمېر هغو ناظمانو لپاره کارول کېږي چې په خپلو نظمونو کې د قافیې کتارولو ته پاملرنه کوي او د شعر هنري او شاعرانه خواوو ته پام نه اړوي. د داسې منظومو ویناوو په اړه کره کتونکي د دې لپاره انتقاد کوي چې ځینې ناظمان یوازې د قافیو د کتارولو او سر پر سر راوړلو مهارت لري، خو د خپل شعر هنري جوهر او ارزښت ته لږه پاملرنه کوي.

قافیه د کلاسیکو شعرونو د چوکاټونو لپاره ضروري ده، په دې توګه:

ـ په غزل کې د لومړي بیت دواړه مسرې (دواړه نیم بیتي) هم قافیه وي او د نورو بیتونو وروستني نیم بیتي یې باید له مطلع سره هم قافیه راشي. په قصیده کې هم همداسې ده.

ـ په څلوریزه کې هم د لومړي بیت دواړه نیم بیتي هم قافیه وي او د دویم بیت دویم نیم بیتي همدغه قافیه اخلي.

ـ په مثنوي کې هر بیت خپله خپله قافیه لري، یعني دا چې د یو بیت دواړه نیم بیتي باید خپله ځانګړې قافیه ولري، خو په عمومي توګه ټوله مثنوي واحد وزن او څپې لري.

د قافيې په هکله د خپل دې بحث په پای کې د پښتو د نوي او معاصر غزل د نومیالي شاعر او غزلبول امیر حمزه شینواري یو غزل راوړو. په یو شمېر اوسنیو غزلو کې په قافیه پسې تړلی ردیف یو څه اوږد راځي او د غزل عمومي آهنګ او موسیقۍ ته ښکلا وربښي.

د استاد امیر حمزه دغه غزل له قافيې سره نښتی همداسې یو ردیف لري:

راشــه مــروره چــې بیـا روغــه ســره وکـړو — نن ښه ده له دې چې سبا روغه سره وکړو

زور د مینې ګوره، که څو روغه زموږ نه وي — یـو ناڅاپه مـوږ پـه خطا روغـه سـره وکـړو

بې د زړه، د زړه لـپـاره چرتـه آیینه وي — څـه چـې لـه ریـباره جـدا روغـه سـره وکـړو

خاندو به سحر غوندې خپه یو که خوشحاله — بـس لکه تـیـاره او رڼـا روغـه ســره وکـړو

ښکلیه د رقیب په خاموشۍ کې مالګه نشته — خوښه که وي ستا چې په دا روغه سره وکړو

پسته به قصې د زړه چاودون لکه د ګل کړو — څـه چـې د بلبل پـه نـوا روغـه سـره وکـړو

اوښکې د تا اوښکې زما، بیا دواړه موسکې شو — بیا په دې برېښنا او ځلا روغـه سـره وکړو

برند کتل د تا وو، اسویلي د حمزه ښکلیه
څـه چـې د بـلا او بـلا روغــه ســره وکـړو

د متن لنډیز:

د شعر په منظومو ډولونو او چوکاټونو کې (قافیه) خپل خاص ځای لري. قافیه هغه سره ورته او همغږه کلمې او توري دي چې د نظمونو د بیتونو په پای کې راځي او تکرارېږي. د قافيې توري د کلمو هماغه برخه ده چې په یو نظم کې همغږي جوړوي.

په ځینو نظمونو کې قافیه له ردیف پرته راځي او په ځینو نظمونو کې په قافيې پسې د ردیف برخه هم وي. ردیف په یو واحد نظم کې له هرې قافيې سره په ورته ډول تکرارېږي. قافیه او ردیف د یو نظم د آهنګ او موسیقۍ د په زړه پورې والي او ښکلا لپاره مهمه برخه ده.



## فعالیتونه

۱ــ زده‌کوونکي دې یو ځل بیا ټول متن په چوپه خوله ولولي او بیا دې د ښوونکي دغو پوښتنو ته ځواب ووایي:

- د کاظم خان شیدا د لومړني غزلې قافیه کومه ده؟
- د دویم غزل قافیه کومه ده؟
- د قافیې او ردیف له مخې د لومړي او دویم غزل ترمنځ څه توپیر شته؟
- قافیه څه ته وایي؟

۲ــ ټول زده‌کوونکي دې د کاظم خان شیدا او امیر حمزه شینواري غزلونه په وار سره ولولي. بل زده‌کوونکی دې د هغه په نظر د سختو او ستونزمنو لغتونو د معنا پوښتنه وکړي، د هر زده‌کوونکي چې یې معنا زده وه، لاس به جګوي او ځواب به ورکوي. د ښوونکي په تایید به یې معنا په خپلو کتابچو کې لیکي.

۳ــ درې تنه زده‌کوونکي دې په دغو موضوعاتو خبرې وکړي:

- په کلاسیکو شعري چوکاټونو کې د قافیې ارزښت
- ردیف څه ارزښت لري؟
- قافیه بندي یا قافیه جوړونه ولې کره کتونکي انتقادوي؟



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د خپلې خوښې د یو شاعر شعر ولیکي او په هغه شعر کې دې قافیې او ردیفونه په جلا رنګونو وښیي. سبا ته دې پرې په لنډیز سره په ټولګي کې خبرې وکړي.

# ادبیات د اسلام د سپېڅلي دین له نظره

د ((ادب)) کلمه بېلا بېلې معناګانې او تعبیرونه لري. چا د نفس تادیب او تهذیب بللی او چا د انساني معارف او تجربو زده کړه. ادب په عام مفهوم د انساني ښېګڼو ټولګې ته ویل کېږي، خو په ځانګړې معنا، ادب یا ادبیات هغه وینا ته ویل کېږي چې په هنري اغېزمن قالب کې د انساني افکارو، احساساتو او تجربو تعبیروونکې وي. د ((ادب)) کلمه د انساني تاریخ له تګلوري سره یوځای د لوړو، ژورو او ډېر اوږد واټن په وهلو وروستیو پېړیو ته رارسېدلې ده. نن که د چا غوږ ته د ((ادب)) کلمه رسېږي، نو په عام ډول ترې د ((شعراو نثر)) په برخه کې د انسان د ذهني انځور معنا اخیستل کېږي.

ادب خیر ښېګڼې او ټولو لوړو ارزښتونو ته د انسان رابلل او له بدو کارونوڅخه د هغه منع کول دي. نېکو او ښو کارونو ته پام اړول او په دې لاره تلل د ادب معنا څرګندوي. د اسلام ستر پیغمبر د ((ادب)) د کلمې دریځ په ډېرو خوږو الفاظو بیان او ډېر ښکلی انځور کړی دی: [ژباړه: قرآن د ځمکې پر مخ د خدای تعالی له خوا خلکو ته د ادب (بلنځای) دی. له دې بلنې څخه زده کړه تر لاسه کړئ.] په دې توګه ((ادب)) او ((ادبیات)) د اسلام په قاموس کې لوړ دریځ لري.

د ((ادب)) لغوي معنا پوهه،فرهنګ،معرفت، غوره لاره، ښه خوی ده. د ((ادب علم)) هغې پوهې ته ویل کېږي چې د هغې په لاسته راوړنه یوشخص کولی شي سم او ښه شعر ووایي اوښکلی نثر ولیکي، سمه او ناسمه خبره یوتر بله توپیرکړي.

د پورته تعریفونو له مخې د ادب د ډګر پوهان د ادب په تعریف اومفهوم کې دوه توکي ډېر اړین بولي چې مفکوره او فني چوکاټ یا مضمون او هنري بڼه ده. په دې لوست کې د اسلام د سپېڅلي دین له نظره د ادبیاتو پر ارزښت او اهمیت خبرې کوو.

_ ستاسو په اند څرګند بیان او شعر د انسان پر ذهن څه اغېز کوي؟

## په اسلام کې د ادب دریځ

یو شمېر لیکوالو او پوهانو اسلامي ادب د اسلامي نړۍ لید له لوري د ادیب پر وجدان د ژوند، هستۍ او انسان د غبرگون هنري تعبیر څرگند کړی دی. دلته غواړو د اسلامي ادب پر تګلوري اوخوځښت لنډه کتنه وکړو:

هغه مهال چې د نړۍ پر هسک د اسلام ځلند لمر راوخوت، عربي ادبیات په (شعر، نثر او وینا) کې لوړې پوړۍ ته رسېدلي وو. شعر او وینا پر عربو هغومره زیات ژور اغېز درلود چې پر روح، روان او د ژوند پر ټولو برخو یې برلاسی شوی و. خدای تعالی د خپلې ارادې او حکمت له مخې د عربو منکرو شاعرانو او ادیبانو ته بلنه ورکړه چې د قرآن د یو ډېر کوچني **سورت** په څېر یو **سورت** راوړي، خو هغوی په دې کار ونه توانېدل:[ژباړه: او که تاسې د هغه کتاب په اړه شکمن یاست چې موږ خپل بنده ته نازل کړی، نو د هغه غوندې یو سورت راوړئ ... البقره سورت: ۲۳]. دا کار له یوې خوا د الهي کلام د اعجاز د اثبات او وروستني پیغمبر د رښتینولۍ تأیید او تاکید لپاره د عربو ویناوالو او پوهانو ننګونه وه، له بلې خوا یې اسلام ته د فصیحې وینا او لوړو ادبیاتو ارزښت او اهمیت څرگند کړ.

لوی خدای جل جلاله د اسلام ستر پیغمبر حضرت محمد ﷺ ته لارښوونه وکړه چې د وینا پر وسلې ((د قرآن پر کلمې)) له مشرکینوسره جهاد پیل کړي. [ژباړه: د قرآن (په وسله) له هغوی سره په ستر جهاد، جهاد وکړه: د فرقان سورت، ۵۲ آیت] د عربو په فکري او ټولنیز ژوند کې شعر او وینا زیات اغېز درلود. له همدې امله له مشرکینو سره د مبارزې او مقابلې په ډګر کې د اسلام د ستر پیغمبر شاعران او ویناوال پر خپلو سیالانو برلاسي کېدل. په یوه فکري او ادبي مبارزه (شعر او وینا) کې د تمیم د لویې قبیلې د پلاوي مشر، اقرع بن حابس اعتراف وکړ او ویې ویل: ((په پوره باور دا سړی (پیغمبر ﷺ) منصور او تأیید شوی دی، ځکه ویناوال یې زموږ د ویناوالو په پرتله څرگند غړېږي او شاعر یې زموږ له شاعر ښخه تکړه دی.)) هغه له خپل قوم سره یوځای د اسلام په سپېڅلي دین مشرف شو.

په دې ډول شعر او ادب د نبوت په پېر او له هغه راوروسته د راشده خلفاوو په زمانه کې د اسلام د زده کړو او ایماني اخلاقوپه سیورې کې پر مخ لاړ. د اسلام د صدر د پېر د ادیبانو او شاعرانو په زړونو کې یې ځای ونیو. د هغوی په شعرونو او اثارو کې د حماسي قصیدو، اسلام ته د بلنې، د اسلامي ارزښتونو پر ویاړنې، د ستر پیغمبر پر صفت او نعت، د اسلام د شهیدانو په ویر، د الله جل جلاله

پر نعمتونو د شکر او نورو بنو وځلېد. په دې پړاوکې د جاهلیت د پېر د شعر او ادب مضمون چې پر مال او شتو، نژاد او قبیلو ویاړنه وه او لوڅ او لغړ غزل پکې دود درلود، له منځه ولاړ او ځای یې نیکو اخلاقو او انساني او اسلامي لوړو ارزښتونو ونیو. ادب او هنر د اسلامي تمدن په لمن کې د انساني لوړو ارزښتونو په توګه وده وکړه او د اسلام او بشري تمدن پر مخ داسې څرګند او ښه وځلېد چې په فرهنګي ډګر او فرهنګي زېرمو کې د انساني برياوو او وياړنو څه ويل له اسلامي ادب او هنر پرته ناشوني او ستونزمن کار و. له بده مرغه دې دود او لارې د تاريخ په اوږدو کې خپل اصلي تګلوری بدل کړ. د اسلامي ادبياتو د کمزوري کېدو له امله هنر او ادب زياتره انساني لوړ ارزښتونه له لاسه ورکړل. اوس د دې مهال رارسېدلی چې پر هغې يو ځل بيا له سره غور وشي، ترڅو خپله لاره بيا مومي او په خپلې اصلي څېرې او بڼې د هنر او ادب ډګر ته راووځي.

د اسلامي ادب ځينې ځانګړتياوې:

په راوروسته پېړيو، په تېره بيا د شلمې پېړۍ په پيل کې د کلاسيک، رومانتيک، رياليستي، ليبرالي ... ادبياتو په څېر بېلا بېل ادبي مکتبونه رامنځته شول. دا ادبي مکتبونه هر يو خپلې ځانګړتياوې لري، چې د هماغه ډلو ټپلو عقېدې او نظريې خپروي، ځکه ادب او هنر د عقيدو او مختلفو فلسفي افکارو د خپرلو وسېله ده.

د اسلامي ليکوالو او پوهانو له مخې اسلامي ادبيات هم خپلې ځانګړتياوې لري او په دې توګه له نورو ادبي مکتبونو سره توپير پيدا کوي.. دا ځانګړتياوې له اسلامي عقېدې اوفکر څخه سرچينه اخلي تر هغه چې د اسلامي ادبياتو صفت بيامومي.

اسلامي ادب زياتې ځانګړتياوې لري. يو څو يې لاندې راوړل کېږي.

۱ــ عقيدوي او اخلاقي مسؤوليت

د اسلامي ادبياتو لومړنۍ ځانګړتيا د ((مسؤوليت)) منل دي. په دې معنا چې اسلامي ادب د اسلامي عقيدې پر بنسټ ولاړ دی او انسان، هستي او ښکلا ته د اسلامي نړۍ ليد له لوري ګوري اوهمدا فسلفه يې بنسټ جوړوي.

۲ــ دنده او رسالت

اسلامي ادب څرګنده موخه اوهدف لري چې د اسلام له حقيقت څخه سرچينه اخلي. يعنې مسلمان شخص داسې وينا او عمل نه کوي چې په هغې کې د چاګټه او موخه نغښتې نه

وي. مسلمان اديب نه غواړي خپل وخت خوشې له لاسه ورکړي او يا د بل چا وخت بې ګټې تېر کړي.

۳ـ بشپړتيا اوهراړخيزوالی

اسلام انساني نفس او روان ته هراړخېزه کتنه کوي او په دې باور دی چې انسان له بدن او روح دواړو څخه جوړ دی. په دې توګه اسلامي ادب د انسان ټولو اړخونو ته پام کوي او تر ارزونې لاندې يې نيسي چې په هغه کې انسجام، توازن او همغږي رامنځته کړي.

٤ـ ربښتينولي

اسلامي ربښتينولي د لويديځ د رياليزم د ادبي مکتب په څېر نه ده چې انسان د ماديت په تنګ چاپېريال کې ساتي او انساني ژوند د هغه د زمان او مکان په ژوروالي او اوږدوالي کې له ياده باسي. بلکې د اسلامي ادب ربښتينولي انسان د هغه د کمزورو اړخونو او نامنلو کړنو سره يوځای په پام کې نيسي، خو دا حالتونه د لوېديځ رياليستي ادب په څېر تلپاتي نه ګڼي. ځکه د اسلامي ادبياتو له مخې د انسان کمزوري او کږلېچ د تکامل وړ دی او هنر په دې برخه کې بنسټيزه او مهمه ونډه لري.

۵ـ رغندتوب او مثبت لوري ته کتنه

د اسلامي ادب بله ځانګړتيا مثبت لوري ته د انسان کتنه او مخ پر ودې فعاليت دی. د دې ځانګړتيا اصلي ريښه د اسلام په اصلي مبادي کې نغښتې ده، ځکه اسلام د انسان کمزوري، ښويېدل او ګناه کول مني، لکه: چې الله تعالیﷻ فرمايلي دي: [ژباړه: انسان کمزوری پيدا شوی دی. النساء: ۲۸] خو له دې ټولو کمزوريو او ګناهونو سره سره بيا هم اسلامي ادب په دې حالت کې د انسان لاس نيسي او د کمزورۍ او نهيلی له کندو يې راباسي او د پياوړتيا او نېکمرغی په لور يې بيايي.

## ادب د فضيلت په خدمت کې

اسلام ((ادب د ادب لپاره)) او ((هنر د هنر لپاره)) څرګندونې نه پېژني، بلکې هنر او ادب د انسان او د ټولنې د خير، فضيلت، ښېګڼې، ژمنې او خدمت يوه لار بولي. سپېڅلی قرآن مؤمن او ژمن شاعران د بېباکه، ناڅرګندو او بې ماهيته شاعرانو له ډلې څخه بېلوي او ستايي يې: [خو هغه کسان (دروغجن او لار ورکي شاعران نه دي) چې ايمان يې راوړی او ښه کارونه سرته رسوي

او الله جَلَّ جَلالُهُ ډېر یادوي... الشعراء ۲۲۷]

د اسلام ستر پیغمبر د وینا ښکلا او د شعر حکمت ستایلی او د شعر د اغېز په اړه یې خپل احساسات څرګند ګړي دي: [ژباړه: ښه وینا د سحر په څېر اغېز کوي. ] او [ځینې اشعار له حکمت څخه ډک دي.]. هغه خپل شاعران راوبلل چې د شعر او ادب وسله د اسلامي ارزښتونو او د اسلامي ټولنې د واکمنۍ او برلاسی لپاره وکاروي. په دې اړه یې حسان بن ثابت رضی الله تعالی عنه ته وفرمایل، چې د مشرکینو شعرونو ته په ښو او لوړو شعرونو ځواب ووایې.

د متن لنډیز:

لکه څنګه چې څرګنده ده شعر او ادب د یوې ټولنې د ویښتیا اوبیداری ستر لامل دی. د یوې ټولنې فرهنګ د هغې ټولنې د شاعرانواو لیکوالو په شعرونو او لیکنو کې غبرګېږي. همدا راز شعر او ادب دی چې د یوې ټولنې تګلوری ټاکي. ښو ته ښه اوبدو ته بد وایي. له نېکه مرغه اسلامي شعر او ادب پېړۍ، پېړۍ راهیسې زموږ د ګران هېواد افغانستان په فرهنګ کې ژورې ریښې ځغلولي دي اوزموږ پر ټولنې یې درونند اغېز کړی دی. زموږ په اسلامي او افغاني ټولنه کې داسې لیکوال اوشاعران تېر شوي او شته چې د اسلامي لارښوونو او ارشاداتو په رڼا کې یې روان ټولنیزحالت څېړلی، خلکو او ولس ته یې د هغوی د نېکمرغۍ او فلاح لاره ښودلې، د ظالمانو ظلم اود حکمرانانو ناروا کارونو ته یې بد ویلي او مظلوم ته یې د ظالم له منګولو څخه د خلاصون لارې چارې ښودلې دي. ځوانو شاعرانو او لیکوالو ته لازمه ده، د علم او پوهې په داسې ګاڼو ځانونه سمبال کړي چې دنیوي او اخروي نیکمرغي یې پکې نغښتې وي. د شعر له لیکلو او لیکوالۍ څخه یې موخه د وخت تېرول او د لوستونکو د وخت زیانول نه وي، د شعرمضمون او محتوا یې رغنده وي، څرګند پیغام ولري او د انساني او اسلامي ارزښتونو په پام کې نیولو سره خپله ټولنه د خیر او فلاح لوري ته رهنمایي کړي. دا حقیقي اسلامي ادب دی او همدا رغنده لار ده.



## فعالیتونه

۱ـ زده‌کوونکي دې د بېلا بېلو ادبي مکتبونو نومونه واخلي او له اسلامي ادبیاتو سره دې پرتله کړي.

۲ـ دوه تنه زده کونکي دې د ټولګي مخې ته راشي او د اسلامي ادبیاتو څو ځانګړتیاوې دې بیان کړي.

۳ـ درې تنه زده‌کوونکي دې د ټولنې په ویښتیا کې د رغنده ادبیاتو رول او ونډه څرګنده کړي.

٤ـ مبتذل هنر او ادب څه شی دی؟ دوه تنه زده‌کوونکي دې د نورو په وړاندې پرې خبرې وکړي.

۵ـ فصاحت او بلاغت په ویناکې څومره ارزښت لري؟ یو تن زده‌کوونکی دې پرې خبرې وکړي.

٦ـ ((ادب د ادب لپاره)) تیوري څه معنا لري؟ دوه تنه زده‌کوونکي دې نورو ته خپل نظر څرګند کړي.

۷ـ زده‌کوونکي دې سوچ وکړي چې ادبیات (شعر او نثر) او رسنۍ د یوې ټولنې په پرمختګ او سوکالۍ کې څه ونډه لري. بیا دې خپل نظر په وار نورو ته واوروي.



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د اسلامي ادبیاتو د اهمیت او ارزښت او د خلکو په ویښتیاکې د هغه د رول په اړه لیکنه وکړي.

# د خوشحال بابا دستارنامه

دستارنامه



تاسو به د خوشحال خان ختېک دغه شعر خامخا اورېدلی وي:

چې دستار تړي هـــزار دي

د دستار سړي په شمار دي

پر دغه شعر یو کتاب خبرې کېدای شي او له نېکه مرغه خوشحال بابا پرې یو ځانګړی کتاب هم لیکلی دی چې ((دستار نامه)) نومېږي. تاسو د خوشحال بابا په اړه مخکې پوره معلومات ترلاسه کړي دي، په دې لوست کې د هغه د ((دستار نامې)) په اړه بشپړ معلومات ترلاسه کوئ او په پښتو ادب کې یې پر ارزښت خبرېږئ.

ـ د خوشحال بابا کوم کوم آثار مو تر اوسه لوستي دي؟

ـ د پښتو د پخواني نثر په اړه څومره معلومات لرئ او کوم کوم کتابونه یې پېژنئ؟

خوشحال خان ختټک د خپل ارزښتناک شعري دیوان په څنګ کې یو شمېر نور کتابونه هم لیکلي دي. د پښتو شعر د ودې او پیاوړتیا د ستر کار په څنګ کې خوشحال بابا د پښتو نثر په وده او پرمختګ کې هم نه هېرېدونکی خدمت کړی دی.

((دستارنامه)) د خوشحال خان ختټک هغه اثر دی چې په پښتو نثر یې لیکلی دی. دغه منثور اثر په ۱۰۷۶ هـ. ق. کال کې خوشحال بابا د هند د رنتبور په زندان کې لیکلی دی. دغه وخت هغه د مغولي واکمن اورنګزېب په امر په رنتبور کې بندي و. خپله خوشحال بابا وایي چې په دې وخت کې دی په زندان کې یوازې و او هېڅ کتاب ورسره نه و چې ګټه ترې واخلي او له خپل هېواد څخه د فراق په حال کې یې د دوستانو، یارانو او زامنو د استفادې لپاره لیکلی دی. د کتاب د لیکلو نېټه یې په دې مسرې کې ښودلې ده:

بس دی محنت د بېلتانه

چې د دې کلمو ابجدي ارزښت (۱۰۷۶) کېږي.

د خوشحال خان ختټک دغه کتاب په حقیقت کې د مشرتوب لپاره د یو لړ شرایطو ښودل دي، دا هغه شرایط دي چې خوشحال بابا یې په یوه ټولنه کې د مشر لپاره یادول او یا لرل لازمي ګڼي. دا د دستار د ایښودلو، د مشرتوب د لرلو شرطونه دي.

په ((دستارنامه)) کې له سریزې وروسته په دوو بابو یا څپرکو کې د مشرتابه لپاره د شلو هنرونو او شلو خصلتونو یا ځانګړنو لرل تشریح شوي دي. دغه شل هنره او شل خصلته په دې ډول راغلي دي:

اول هنر د ځان د پېژندګلوی، دویم هنر د علم چې کسب کمال باله شي، دریم هنر د خط، څلورم هنر د شعر د نظم، پنځم هنر د تیر اندازۍ دی، شپږم هنر د آب بازۍ، اووم هنر د آسب تازۍ، اتم هنر د ښکار، نهم هنر د شجاعت، لسم هنر د سخاوت، ورکول، پخول، یوولسم هنر د معاشرت، دولسم هنر د اولاد د تربیت دی، دیارلسم هنر د تادیب د خدم، څوارلسم هنر د اسباب د معشیت، پنځلسم هنر د زراعت، شپاړسم هنر د سوداګرۍ د تجارت، اووه لسم هنر د تحقیق د نسب، اتلسم هنر د علم موسیقي، نولسم هنر د نرد د شطرنج دی، شلم هنر د نقاشۍ د تصویر دی.

د خصلتونو په اړه کې دغه شل ځانګړنې لازمې بلل شوې دي:

اول خصلت د مشورت دی، دویم خصلت د عزم، دریم خصلت د خاموشۍ دی، څلورم

خصلت د راستۍ، پنځم خصلت د شرم د حيا دی، شپږم خصلت د خلقت دی، اووم خصلت د مروت دی، اتم خصلت د عفو و کرم، نهم خصلت د تميز د تانی، لسم خصلت د عدل د انصاف دی، يوولسم خصلت د توکل دی، دولسم خصلت د تربيت، ديارلسم خصلت د خوف د رجاء دی، څوارلسم خصلت د ملك د انتظام، پنځلسم خصلت د همت دی، شپاړسم خصلت د حلم، اووه لسم خصلت د غيرت دی، اتلسم خصلت د حزم د احتياط، نولسم خصلت د طاعت او شلم خصلت د استغفار.

اروانښاد پوهاند عبدالحی حبيبي د خوشحال خان خټك د دستارنامې په اړه وايي:

خوشحال خان د دستار نامې په ليکنه کې يو مهم کار کړی او هغه دا دی چې ده د پښتو د نثر ليکلو کلك بنسټ په دې کتاب کې پر ساده او روان نثر باندې ايښی دی. د پښتو نثر لرغونې نمونه چې موږ پيدا کړې ده، د کندهار د ارغسان د سليمان ماکو د تذکرة الاولياء يو څو پاڼې دي چې د تاليف کال يې ۶۱۲ هـ. دی او دغه ليکوال ډېر روان، روښانه او بې تکلفه نثر ليکلی دی او دا ترې څرگندېږي چې د پښتو نثر د مغولو تر دورې د مخه ساده او روان و. کله چې بايزيد پير روښان د ۹۷۰ هـ. په شاوخوا کې خپل خير البيان ليکه نو مبهمې او تصنعي جملې يې پکې کارولې او تر ده وروسته بيا نورو ليکوالو (لکه اخوند درويزه او نورو) هم د ده پيروي کوله، څرنگه چې دغه ډول نثر په پښتو کې کوم ادبي او هنري ارزښت او ښايست نه لري، نو ځکه خوشحال خان د پښتو نثر ليکنې هغه ستونزمنه لاره پرېښوده او پښتو نثر يې د ساده، روانې او خوږې پښتو لارې ته برابر کړ.

خوشحال له افغاني دودونو سره سم دستار د انسان د لياقت او استعداد سمبول گڼي او پگړۍ د ادارې او د اجتماعي ښېگڼې د قوت لپاره يو تعبير بولي. تاريخي روايتونه دا خبره ثابتوي چې د دې سيمې خلکو په اداره، سياست او اجتماعي اخلاقو او جهاندارۍ کې ځينې پاخه اصول او فکرونه درلودل.

اروانښاد پوهاند صديق الله رښتين هم د خوشحال بابا د نثر په اړه ليکي:

خوشحال خان خټك څنگه چې د شعر په نړۍ کې د لوی نوم او شهرت خاوند دی، دغسې د نثر په جهان کې هم يو تکړه پهلوان گڼل کېږي. په يوولسمه پېړۍ کې چې د پښتو نثر په باغ و بڼ د قافيه وال نثر کومه څپه راغلې وه او پښتو نثر يې له روانۍ او ساده گۍ ويستلی و، د خوشحال په وخت کې هغه باغ و بڼ بيا تازه گي وموندله او د پښتو نثر له منځه د قافيې او سجع تکلف لرې

شو. د دې کار لومړی بېرغ د خوشحال په لاسو پورته شو. ده په خپلو اثرونو کې د عادي روان او ساده نثر لیک ډول بیا میدان ته راوایست او د روښان او درویزه د نیم منظوم نثر سلسله یې وشلوله. لکه څنګه چې خوشحال په منځنۍ دوره کې د پښتو شاعرۍ، په تېره د قومي، ملي او حماسي شاعرۍ سرلاری ګڼل کېږي، دغسې د نثر په ډګر کې هم د یو لاربنود او مؤسس په نامه یادېږي.

په دستارنامه کې سیاست، تدبیر، اخلاق، پوهه او پښتونولي دا ټول یو ځای شوي دي او د پښتو په ښایسته جامه کې یې ځان ښکاره کړی دی. په دستارنامه کې ځای په ځای پښتو شعرونه، پارسي بیتونه او عربي عبارتونه هم راغلي دي چې هغه پرې خپل مطلب ثابتوي. دلته د دستارنامې د نثر د بېلګې لپاره د (څلورم هنر د شعر، د نظم) د سرلیک یوه برخه لولو:

((دا هنر چې د شعر د نظم دی، هم داخل د کسب کمال دی، اما مشتق دی له شعوره چې جبلي طبیعت د شعر لري، شعر د هغه دی. فنونه، صنعتونه یې په کسب حاصلېږي. که ډېر تحصیل د علم وکا، صنایع، بدایع د شعر زده کا چې طبیعت د شعر جبلي نه لري، خبره به نظم نه کا. د شعر هم جبلي طبیعت بویه، هم یې علم د صنایع بدایع بویه چې واړه زده کا، سوای تر دا نمک، شیریني د شعر تعلق په درد په محبت لري چې پخته ګي یې په استعمال. در اصل شعر په لغت کې کلام منظوم و ته وایي، دواړه مصراع د بیت په تول تللې، په حرفونو سره سمې، عروض قافیه سره جوړ...

د شعر طبیعت په مثال د توند باد دی. لوېې ونې طاقت لري چې ورته ودرېږي او که نه چې بنیاد محکم نه لري، هغه ونې له ویخه نړوي. قوت د علم بویه چې وېخ یې پرې محکم وي او کنه، بې افت، مضرت به پاته نه شي چې بې علم شعر وایي څو نقصانه لري.

اول خو به یې درست ونه وایي. د شعر د عیب جاسوسان ډېر دي، ځان به د خندا کا. بل دا چې که فقط د شعر بدایع صنایع د عروض علم زده کا، قوت یې د نور علم نه وي، خطا به ورځنې واقع شي، ایمان به بای کا. بل دا چې د شعر مستي ډېره ده چې تاب یې د مستی د علم په زور رانه وړي، مخبط به شي، که له دې واړو کارونو تېر، کمال یې حاصل، هغه سړی که شعر وایي، هغه علم، حکمت، فضیلت دی، و هغه وته که رخصت نه دی هم رخصت دی.))

د متن لنډيز:

خوشحال خان خټک د مهمو منظومو آثارو تر څنګ په نثر هم يو شمېر غوره کتابونه ليکلي دي. په دې لړ کې ((دستار نامه)) په ځانګړي ډول د يادونې وړ ده. دستار نامه خوشحال بابا د هندوستان د رنتبور په زندان کې په ۱۰۷٦ هـ. ق. کال هغه وخت ليکلې ده چې د مغولي مستبد واکمن اورنګزېب له خوا هلته بندي و. په زندان کې ورسره کتابونه نه وو او دغه مهم اثر يې له خپلې حافظې څخه ليکلی دی. د نورو آثارو بيتونه يې هم له خپلې حافظې پکې نقل کړي دي.

دستار نامه د پښتو نثر په وده کې ډېر ارزښت لري. د هغه نثر روان، ساده او ښکلی دی. په دستارنامه کې د پښتو نثر يوه ځانګړې تيره ايښودل شوې ده.




ـ رنتنبور: په هندوستان کې د هغه وخت يو مشهور زندان و چې خوشحال بابا پکې بندي و.

ـ ابجد: د شمېر يو ځانګړی ډول دی. زموږ په کلاسيکه شاعرۍ کې د وخت او نېټو د ټاکلو لپاره ترې ګټه اخيستل کېدله. داسې چې هر توری د يو عدد (شمېر) لپاره ټاکل شوی دی. کله چې د يو بيت توري د دغو ټاکلو عددونو په شمېر سره جمع شول نو يوه ځانګړې نېټه يا کال ترې جوړېږي. د ابجد ټول توري داسې دي: ابجد هوز حطی کلمن سعفص قرشت ثخذ ضظغ. او شمېر يې داسې دی:

| ی | ط | ح | ز | و | هـ | د | ج | ب | ا |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ۱۰ | ۹ | ۸ | ۷ | ٦ | ۵ | ٤ | ۳ | ۲ | ۱ |

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ك | ل | م | ن | س | ع | ف | ص | ق | ر |
| ۲۰ | ۳۰ | ٤۰ | ۵۰ | ٦۰ | ۷۰ | ۸۰ | ۹۰ | ۱۰۰ | ۲۰۰ |
| ش | ت | ث | خ | ذ | ض | ظ | غ | | |
| ۳۰۰ | ٤۰۰ | ۵۰۰ | ٦۰۰ | ۷۰۰ | ۸۰۰ | ۹۰۰ | ۱۰۰۰ | | |

## فعالیتونه

۱ـ زده‌کوونکي دې د دې لوست يو يو پراګراف په لوړ غږ ولولي. نور زده‌کوونکي دې ورته غوږ شي. په هر پراګراف کې دې يو بل زده‌کوونکی يوه پوښتنه جوړه کړي او له همدې زده‌کوونکي څخه دې يې وکړي چې متن يې لوستی دی. دا کار دې په ټول لوست کې تکرار شي.

۲ـ ګرامري برخه: زده‌کوونکي دې په دريو ډلو ووېشل شي:

الف: لومړۍ ډله دې د دې متن خاص نومونه له ځانه سره وليکي.

ب: دويمه ډله دې عام نومونه يادداشت کړي.

ج: دريمه ډله دې د دې متن صفتونه يادداشت کړي.

د: هره ډله دې خپل خپل لیست وليکي او ټول دې يې په ګډه لیست بشپړ کړي.

۳ـ د ابجد د تورو د شمېر په اړه دې زده‌کوونکي يو له بله پوښتنې وکړي.

٤ـ څو تنه زده‌کوونکي دې د دستارنامې په اړه خبرې وکړي.

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د دستارنامې هغه نثر چې د دې لوست په پای کې راغلی دی، په غور ولولي او بیا دې د شعر او نظم په اړه د خوشحال بابا خبرې په خپلو خپلو عبارتونو وليکي.

# پښتو قلمي پانګه



د پښتو ژبې د کتابونو قلمي پانګه زموږ د کلتوري او ادبي میراث یوه ډېره ارزښتناکه برخه ده. دا په پښتو ژبه د لاسکښلو (قلمي) کتابونو هغه نسخې دي چې د تېرو اوږدو کلونو په لړ کې لیکل شوي، په بېلابېلو وختونو کې د بېلابېلو کاتبانو یا خطاطانو له خوا خطاطي شوي او د نړۍ په ګوټ ګوټ کې په بېلابېلو هېوادونو کې په ملي کتابتونونو یا ارشیفونو او یا د ځینو کسانو په ځانګړو (شخصي) کتابتونونو کې د قیمتي آثارو په توګه ساتل کېږي.

په دې لوست کې په افغانستان، پښتونخوا او ټوله نړۍ کې د پښتو د دغې ارزښتناکې علمي، ادبي او کلتوري پانګې په اړه تاسو ته ګټور معلومات وړاندې کېږي. د دغې پانګې د ارزښت او اهمیت په اړه به تاسو ته یو شمېر ټکي روښانه شي.

قلمي پانګه هغو نسخو یا کتابونو ته ویل کېږي چې په لاس لیکل شوي او خطاطي شوي وي. دغه کتابونه یا قلمي نسخې د دې په څنګ کې چې ځینې یې د خطاطۍ د هنر ښکلې نمونې لري، زموږ د ولس او ژبې د علمي او ادبي شتمنۍ غوره پانګه یې هم په خپلو پاڼو کې خوندي کړې ده.

له بده مرغه د پښتو ژبې د دغې ارزښتناکې قلمي پانګې ډېره زیاته برخه د زمانو د ناوړه حالاتو او شرایطو له کبله له منځه تللې ده، خو هغه برخه چې موږ ته راپاتې ده او د زمانې توپانونو له ځانه سره نه ده وړې، دغه برخه هم ډېره ارزښتناکه ده. که موږ ښه ځیر شو، نو هغه حالات او شرایط په ښه توګه ځانته څرګندولی شو چې زموږ د دغې مهمې ادبي او کلتوري پانګې ډېره برخه یې تباه کړې، سوځولې او تر خاورو لاندې کړې ده. دلته ځینو هغو لاملونو ته تم کېږو چې زموږ دغه غوره پانګه د زمانو په اوږدو کې څنګه له تباهۍ او ترې تم کېدو سره مخامخ شوې ده:

۱ــ زموږ په ولس کې د زده کړې او سواد د کچې ټيټوالی د دې لامل شوی چې خپله زموږ خلک خپلې دې پانګې ته پاملرنه ونه کړي. له بده مرغه زموږ خلک د خپلې ژبې د مهمو قلمي کتابونو ساتلو او خوندي کولو ته نه دي متوجه شوي. وخت په وخت یې له لاسه وتلي، په قبرونو او سمڅو کې یې تر خاورو لاندې کړي او آن سوځولي یې دي.

۲ــ د کورنیو جګړو او بهرنیو یرغلونو په لړ کې جنګ جګړو هر څه تباه کړي دي. د دغو جنګ جګړو اورونو زموږ ډېر ادبي او کلتوري میراثونه او په دې لړ کې زموږ د ژبې ډېر قلمي کتابونه له منځه وړي او تباه کړي دي.

۳ــ له بده مرغه موږ د اوږدو ناخوالو بهیرونو هم د خپلو کلتوري او ادبي میراثونو راټولولو او تنظیمولو ته نه یو پرېښي. اوس به هم د افغانستان او پښتونخوا په ګوټ ګوټ کې ډېر داسې قلمي کتابونه موجود وي چې موږ ترې نه یو خبر، یا به د کورونو، حجرو او جوماتونو په کونجونو کې پراته وي او یا به په قبرونو او سمڅو کې خاورو او چینجو خوړلي او یا نیمه سلامت پراته وي، خو خپل ولس به یې ترې نه وي خبر.

د شتو معلوماتو له مخې په افغانستان، پښتونخوا او د نړۍ په جلا جلا برخو کې د پښتو

ژبې هغه قلمي کتابونه چې له پورته يادو شوو ناخوالو څخه روغ پاتې او يا يې تر اوسه پورې مورږ ته پته لګېدلې ده، دغه اثار او کتابونه هم د پښتو د سترو او ارزښتناکو علمي، ادبي پانګو په توګه د پاملرنې وړ دي.

تر اوسه پورې د درې زرو په شاوخوا کې د پښتو قلمي کتابونو څرک لګېدلی دی، دا د داسې يو ولس لپاره چې د ژوند ډېره برخه يې په جنګ جګړو کې تېره شوې او نورې خونړۍ پېښې او تاړاکونه پرې راغلي دي، يوه وياړلې فرهنګي- ادبي پانګه ګڼل کېږي.

د پښتو د دغو قلمي کتابونو او نسخو په اړه زموږ يو شمېر پوهانو او يو شمېر بهرنيو څېړونکو پلټنې کړې او خپرې کړې دي. د افغانستان نوميالي ليکوال څېړندوی حبيب الله رفيع د پښتو قلمي پانګې د راپېژندلو لپاره د ستاينې وړ کار کړی، خو لا تر اوسه نه دی خپور شوی. په دې لړ کې يو شمېر کتابونه خپاره شوي او په هند، انګلستان، روسيې، افغانستان او پښتونخوا کې يې يو شمېر پښتو قلمي کتابونه راپېژندلي دي.

د هغو معلوماتو له مخې چې اوس زموږ په واک کې دي، تر ټولو زياتې قلمي نسخې د پېښور په پښتو اکاډمۍ کې خوندي دي چې شمېر يې (٥٢٠) نسخو ته رسېږي. ورپسې د افغانستان د علومو اکاډمۍ کتابتون راځي چې (١٧٧) پښتو قلمي کتابونه پکې ساتل کېږي. د افغانستان په ملي ارشيف کې (١٢٦) نسخې خوندي دي.

په بهرنيو هېوادونو کې تر ټولو زياتې پښتو قلمي نسخې د انګلستان په کتابتونونو کې خوندي دي چې شمېر يې (١٦٩) نسخو ته رسېږي. د هند په کتابتونونو کې (١٤٤) او د پخواني شوروي په کتابتونونو کې (٥٠) نسخې خوندي دي.

له دغو رسمي کتابتونونو چې راتېر شو په يو شمېر شخصي کتابتونونو کې هم زيات شمېر ارزښتناک پښتو قلمي کتابونه ساتل کېږي.

د پښتو قلمي نسخو په فهرستونو کې ډېر مهم کتابونه را تر سترګو کېږي چې يو شمېر يې زموږ د لرغوني او کلاسيک ادب ډېر مهم کتابونه ګڼل کېږي.

په دغو نسخو کې د تاليف له مخې ډېره زړه نسخه د سليمان ماکو ((تذکرة الاولياء)) ده چې تر ٦١٢هـ. ق. کال وروسته تاليف شوې ده. د کتابت له مخې ډېره زړه نسخه د پير

روښان ((خیر البیان)) ده چې په ۱۰۶۱هـ. ق. کال کې خطاطي شوې ده.

د شتو معلوماتو له مخې د پښتو قلمي پانګې په لړ کې هغه اثر چې ډېرې زیاتې نسخې یې په لاس کې دي د اخوند درویزه ((مخزن الاسلام)) دی چې تر ۳۰۰ زیاتې نسخې یې پیدا شوې دي.

په دغو نسخو کې مهمې مصورې نسخې د رحمان بابا دیوان او د سکندر خان ((لیلی او مجنون)) دی چې په سوونو تصویرونه لري. ډېرې نفیسې او هنري نسخې د خوشحال بابا دیوانونه، د مصري خان ګګیاڼي دیوان، د سکندر خان دیوان او ګڼې نورې نسخې دي چې په ښکلي خط کښل شوې دي. دغه راز ډېرې قیمتي نسخې د خوشحال خان خټک په خپل لاس لیکلی دیوان دی چې پر ۱۰۹۹هـ. ق. کال یې کتابت کړی او دغه راز د محمد هوتک پټه خزانه ده چې په ۱۳۰۳هـ. ق. کال کې یې کتابت ترسره شوی دی.

په دغو نسخو کې یو شمېر نسخې چاپ او خپرې شوې دي، خو یو زیات شمېر دغه قلمي نسخې او کتابونه تر اوسه پورې لا د چاپ په ګاڼه نه دي سمبال شوې. که دغه نور مهم آثار هم چاپ او خپاره شي نو زموږ د ولس ستره ادبي، علمي او کلتوري پانګه به د ټولو لاسونو ته وروړسېږي.

د متن لنډیز:

پښتو ژبه ډېرې قلمي نسخې لري. دغه قلمي نسخې د افغانستان، پښتونخوا او د نړۍ په ګوټ ګوټ کې په ملي او رسمي کتابتونونو او ارشیفونو او دغه راز د ځینو کسانو په ځانګړو او شخصي کتابتونونو کې ساتل کېږي. تر اوسه پورې د پښتو د دغې قیمتي پانګې د نژدې درې زره نسخو یا کتابونو پته لګېدلې ده. دغه نسخې زیاتره یې په افغانستان، پښتونخوا، انګلستان، هند، پخواني شوروي اتحاد او نورو ځایونو کې خوندي دي. سره له دې چې له دغو نسخو څخه د لرغوني او کلاسیک ادب یو شمېر آثار چاپ او خپاره شوي دي، خو ګڼ شمېر داسې مهم او ارزښتناک آثار لا تر اوسه پورې ناچاپ پاتې دي چې خپرېدل یې د ژبې د شتمنۍ په زیاتونه کې مهمه ونډه لري.



## فعالیتونه

۱ـ د دغه متن یو یو پراګراف دې په وار سره یو یو زده‌کوونکی په لوړ غږ ولولي او نور دې ورته غوږ کېږدي.

۲ـ د متن له لوستلو او اورېدلو وروسته دې زده‌کوونکي دغو پوښتنو ته ځوابونه ووايي:

- تر اوسه پورې په ټوله نړۍ کې د څومره پښتو قلمي نسخو او کتابونو پته لګېدلې ده؟
- تر ټولو زیاتې پښتو قلمي نسخې په کوم ځای او کوم کتابتون کې ساتل کېږي؟
- په نورو کومو رسمي کابتونونو کې د پښتو قلمي نسخې شته دي؟
- د ملي او رسمي کتابتونونو او ارشیفونو په څنګ کې په نورو کومو ځایونو کې پښتو قلمي نسخې او کتابونه ساتل کېږي؟

ګرامري برخه:

الف: تاسو د ستاینوم (صفت) په اړه پوره معلومات لرئ. په دغه ټول متن کې تاسو لومړی صفتونه په نښه کړئ او بیا یې په خپلو کتابچو کې د دغه صفت پر ځای بل صفت وکاروئ، لکه په دې توګه:

((له بده مرغه د پښتو ژبې د دغې ارزښتناکې قلمي پانګې ډېره زیاته برخه د زمانې د ناوړه حالاتو او شرایطو له کبله له منځه تللې ده...))

د صفتونو (ستاینومونو) له بدلون سره:

((له بده مرغه د پښتو ژبې د دغې قیمتي لاسکښلې پانګې ډېره زیاته برخه د زمانې د خرابو حالاتو او شرایطو له کبله له منځه تللې ده...))

ب: په دې متن کې لس قیده په نښه کړئ.

که تاسو ته د خپل کور، کلي، جومات او حجرې په کوم کونج کې د کوم قلمي کتاب پته لګېدلې وي، په لنډه توګه يې معرفي کړئ. که مو پيدا نه کړ، په کلي کور کې د کوم بل مهم پښتو کتاب په اړه نيمه پاڼه ليکنه وکړئ او په سبا يې خپلو ټولګيوالو ته واوروئ.

د کاظم خان شيدا څو څلوريزې

پـــه لـــږ قـــانـــع شـــه خـــاطـــر کـــړه جـمـع
لـــرې لـــه زړه کـــړه د ډېـــرو طـمـع
چـــې قـــنـــاعـــت يـــې پـــه ســيـم ونـــه کړ
ســـر بـــريـــده شـــوه پـــه زرو شـمـع

فـــروتـــنـــي کـــړئ ســـربـــلـــنـــدانـــو
بـــهـــره يـــو نـــه وړه خـــودپـــســـنـــدانـــو
تـــل خـــمـــيـــده وي بـــارداري څـــانـــګـــې
تـــواضـــع خـــوی کـــړه بـــهـــره مـــنـــدانـــو

واوره لـــه مـــا نـــه کـــه شـــنـــوا يـــې
د آزلـــه ســـتـــه ولـــې رســـوا يـــې
د رزق پـــه مـــرســـتـــه ســـرګـــردانـــي کـــړې
کـــه مـــوږ تـــر حـــلـــقـــه لـــکـــه آســـيـــا يـــې

پـــه زړه مـــې ګـــرځـــي د غـــرونـــو څـــوکـــې
حـــمـــلـــې د بـــازو د زرکـــو کـــوکـــې
ووايـــه څـــه کـــا د روه نـــســـيـــمـــه
ګـــيـــرا مـــنـــګـــولـــې زيـــبـــا مـــښـــوکـــې





# عبدالحميد مومند

د پښتو ادبیاتو د لرغوني او منځنۍ دورې د نومیالیو شاعرانو په اړه مو ځای ځای ځیني مطالب لوستي دي. د پښتو په کلاسیکه شاعرۍ کې ډېر لیکوالان او شاعران تېر شوي خو دلته یوازې درې نومیالۍ څېرې د پښتنو د باباګانو (لویو سټو) په توګه تر بل هر چا د زیات شهرت او محبوبیت لرونکي دي. خوشحال بابا، عبدالرحمٰن بابا او عبدالحمید مومند بابا.

په تېرو ټولګیو کې د خوشحال خان خټک او عبدالرحمن بابا په اړه غږېدلي یو، په دې لوست کې د عبدالحمید مومند ژوندلیک، آثار او کتابونه پېژنو او د هغه د شعر په زړه پورې بېلګې لولو.

عبدالحمید مومند د پښتو له سترو شاعرانو څخه ګڼل کېږي. له بده مرغه د نورو ډېرو پخوانیو شاعرانو په څېر یې د زوکړې او مړینې جوتې نېټې نه دي معلومې. د زېږېدو د ټاټوبي په هکله یې هم څېړونکي یوه خوله نه وو، خو وروستیو څېړنو جوته کړې ده چې حمید بابا د پېښور- کوهاټ سرک او باړې روډ پر بڼي غاړه پراته کلي ماشوکګر (ماشو) کې زېږېدلی دی.

د پخوانیو څېړنو له مخې یې ژوند تر ۱۱٤٥ هـ. ق. پورې باوري و، خو د هغه د شرعة الاسلام نومي کتاب له پیدا کېدو سره سم، معلومه شوه چې تر ۱۱٤۸ هـ. ق. کال پورې خو ژوندی و، ځکه چې هغه کتاب یې په همدې کال پای ته رسولی دی. مزار یې د ماشو (یا ماشوکګر) په لویه هدیره کې دی.

د حمید مومند په آثارو کې دغه لاندې کتابونه تر اوسه پیدا شوي او وخت پر وخت خپاره شوي دي:

۱ـ دیوان: د حمید دیوان د اټکل له مخې د هغه په خپل ژوند کې راټول شوی دی. په ادبي کړیو او محافلو کې د (دُرو مرجان) په نوم هم یاد شوی دی. قلمي نسخې یې زیاتې پیدا کېږي او څو څو ځله په هندوستان، پښتونخوا او افغانستان کې چاپ او خپور شوی دی. د عبدالحمید مومند وروستی چاپ شوی دیوان تر ټولو بشپړ دیوان دی چې (۲۹۰) غزلې، قصیدې، یو مخمس، یو ترکیب بند او دوې څلوریزې لري چې د ټولو بیتونو شمېر یې (۲۹۳۲) ته رسي.

۲ـ شاه او ګدا: د حمید بابا یو ژباړل شوی منظوم داستاني اثر دی. دغه اثر هغه له فارسي نظم څخه پښتو ته اړولی دی. شاه او ګدا په فارسي ژبه د هلالي چغتایي اثر دی. د ژباړې په پیل کې حمید مومند وایي:

چــې باعــث اخونــزاده غــلام محمد شــو — د نفــر په ځېــر صاحب په خوش آمد شــو
وې یې زر شــه قلم واخلــه تکیه خدای کړه — په پښــتو، فارســي قصه د شــاه گــدای کړه
هلالــي کــه د هــلال پــه ځېــر نــګار کــړه — ته یې میاشــت د څوارلسمې په سینګار کړه
غــرض دا چــې پــه غوښــتو د دې غــرض — را تــه پیــښ پــه هــره پیښــه شــو مــرض
پــرې مــې نــه لګېــدې هېــڅ انــې بانــې — را تــه کښېناســت مدعــي پــه آســتانې
چــې یــې نــه شــوم لــه خاطــره وتــی هېڅ — خــواه ناخــواه مــې زړه تــه واچــاوه دا پېڅ
لېونــي غونــدې مې پــورې په کــور اور کړ — پــه رڼــا مــې یــې روښــانه کلــی کــور کــړ
دې ویــلاړ مــې فراغــت لــه زړه ولاړ کــړ — د بــل زړه مــې رغــاوه خپــل مــې لتــاړ کړ
پــه تکلیــف ســره مې ګــرم ســوړ دکان کړ — ســم له لاســه مــې دا تېر پــرې پیــکان کړ
چــې پــه زړه کې مــې لــړم د دې فکرت و — ســن زر ســل اووه دېرش کالــه د هجرت و

۳ـ نیرنګ عشق: دغه اثر په فارسي ژبه د مولانا محمد اکرم غنیمت په قلم لیکل شوی او حمید مومند په خوږه او روانه شاعرانه ژبه پښتو کړی دی.

٤ـ شرعة الاسلام: دغه اثر په عربي ژبه لیکل شوی دی او لیکوال یې د بخارا مفتي امام الواعظ محمود بن ابی بکر الحنفي دی. حمید مومند د حضرت پیغمبرﷺ د سنتو په اړه دغه کتاب په پښتو خواږه نظم ژباړلی دی. د دغه کتاب بشپړه نسخه چې د اټکل له مخې پنځلس زره بیته ده، تر اوسه نه ده پیدا شوې، خو نیمایي کتاب یې چې تر اوسه تر لاسه شوی دی، د بیتونو شمېر یې (۷۳۶۰) ته رسېږي.

د پښتو ادبي تاریخ څېړونکي حمید مومند په پښتو شاعرۍ کې د هندي مکتب یا هندي سبک مخکښ ګڼي، دی خپله هم په پښتو شاعرۍ کې د داسې یو ځانګړي سبک مؤسس ګڼل شوی دی چې وروسته نورو شاعرانو هم پر هغه لاره یون کړی دی.

کاندید اکاډمیسین محمد صدیق روهي په دې اړه په زړه پورې بحث کوي چې ځینې برخې یې لولو:

حمید مومند په داسې شرایطو کې لوی شوی دی چې له یوې خوا هندي سبک د خپل عروج لوړې څوکې ته نژدې شوی دی او له بلې خوا د پښتو ادب په هسک کې له ده څخه

مخکې د خوشحال او رحمان بابا په شان رانه ستوري ځلېدلي وو. د حمید فرهنګي چاپېریال د ادبي نوښتونو او مذهبي بدعتونو د خپرېدو له دوران سره اړه لري. په دغه دوران کې په هنر او شعر کې پرمختیا او نوښتونه لیدل کېږي. حمید د دغه چاپېریال یو پښتون شاعر دی، یعنې د ده په شعر کې د یاد شوي کلتور چاپېریال او د پښتو د ادبي میراث ارزښتونه سره ترکیب شوي دي او نوی سبک یې ایجاد کړی دی. دغه سبک د هندي سبک تر اغېزې لاندې دی، خو تر یوې اندازې یې خپله خپلواکي هم ساتلې ده. حمید د هندي سبک په اړه ښه پوهېده او د هغه د تقلید پوره وړتیا یې هم لرله، خو ده په ارادي توګه د پښتو د خپل متداول سبک خپلواکي په پام کې ساتلې وه.

د حمید مومند په شاعرۍ کې بېلابېل عشقي، اجتماعي، اخلاقي او نورې موضوع ګانې د شعر د مضمون په توګه را تر سترګو کېږي.

چې د بل په نامرادۍ کې مراد غواړې
دا سبب ګڼه د خپلې نامرادۍ

یا دا چې:

یو قدم چې د بدانو پیروي کړې
دانسته په لوی کمر ځغلې میدان خورې
ما ته سره په وینو خوله لېوه لیده شي
چې د ظلم په پیسه پېروی پان خوري

یا:

په خندا خدمت د خلقو کړه که مرد یې
جفا کښه نښانه اوسه تیر مه شه
نور قیدونه واړه سهل دي حمیده
خو په غاړه دې د طمعې زنځیر مه شه

د حمید دیوان چې په ((دُر و مرجان)) هم نومول شوی، د پښتو د لوړې شاعرۍ غوره بېلګې لري. د هغه په دیوان کې د نازکخیالۍ نندارې ته کښېناستی شو او له همدې کبله

حمید مومند د نازکخیال او موشګاف شاعر په نوم شهرت لري. د هغه منظومې ژباړې هم د پوره ارزښت وړ دي. د ((نیرنګ عشق)) او ((شاه او ګدا)) منظومې ژباړې یې ډېرې په زړه پورې دي. د حمید مومند د دیوان د انتقادي متن ښاغلي ترتیبونکي د دیوان په سریزه کې د هغه د ژباړو ځانګړنې شمېرلې دي:

١ـ دی ترجمه په داسې قوت کوي چې په دواړو ژبو کې یې لاسبری ځنې ښکاري.

٢ـ د ده ژباړې د بلې ژبې د تعبیرونو رنګ نه لري، بلکې زیار یې ایستلی دی چې د پښتو ژبې په خپل اصلي رنګ کې یې ترجمه کړي.

٣ـ د ده ترجمه ټکی په ټکی نه بلکې آزاده ترجمه ده او اصل مطلب یې په خپله خوښه په آزاده توګه ژباړلی دی.

٤ـ له ترجمې یې د ژباړې بوی نه راځي او سړی فکر کوي چې دغه وینا خپله د شاعر ده. د ده ټولې ژباړې دغه ځانګړنې لري.

د عبدالحمید مومند له دیوان څخه د هغه د کلام دوه بېلګې را اخلو او د هغه د شعر د نمونو په توګه یې لولو:

لومړۍ نمونه:

یاره مه نمانځه رقیب په دشنامونه | هر سفله ته بخښل نه شي انعامونه
یا مې عمر تلوار کړونی دی یا ته یې | چې همېش راځخه ځې په لوی ګامونه
په اواز د اوبو تنده نه ماتېږي | کله سود شي د دیدن په سلامونه
یار له یاره خوا په خوا فایده مومي | اخیستی نه شي بوسه په پیغامونه
کامراني مې له تا هېڅ حاصله نه کړه | ډېر مې وکړه په دا طمع ناکامونه
چې له تا د وفا طمع کړم پوهېږم | بېهوده ږدم و عنقا و ته دامونه
چې مجنون غوندې په مینه کې ګمنام شي | د هغو په جهان وخېژي نامونه

چې سبا مشت و ګرېوان وي له خوبانو
که نن وکاندي حمید سل سوګندونه

دویمه بېلګه:

ارزومنـد د یـار د درد پـه دوا مـه شـه
ببګانه د خپلو منځ لره را مه شه

هنګامـه د مینـې ګرمـه ده تـر حسـنه
د مجنون د در ګدا شه لیلا مه شه

کـه بانـه دي د نـګار ټـول تېره غشـي
یو زما د زړه له نخښې خطا مه شه

کـه مي پرېوته سـیاهي په خاطـر باندې
چې له زلفو د دلدار ده رڼا مه شه

کـه بلا په عشـق کې ډېـرې وي ناصحه
دا بلا واړه په ما شه په تا مه شه

پروانـه غوندې خوله پټه خپسـر سـپزه
د سپند په څېر شوخ چشم رسوا مه شه

هېڅ دې دم وربانديې نه لګي ناصحه
دا حمیـد بـلا وهلـی مـلا مـه شـه

د متن لنډیز:

عبدالحمید مومند د پښتو په پخوانیو شاعرانو کې د پوره شهرت خاوند دی. په پښتو ادب کې تر خوشحال خان خټک او عبدالرحمن بابا وروسته، د حمید مومند شهرت او محبوبیت تر نورو زیات دی. د حمید ژوند تر ۱۱٤۸ هـ. ق. کال پورې باوري دی. د شعر دیوان یې د ((دُرو مرجان)) په نوم شهرت لري او پر دیوان سربېره یې دغه آثار هم په نظم ژباړلي دي: شاه او ګدا، نیرنګ عشق او شرعة الاسلام.
عبدالحمید مومند د خپل ځانګړي سبک شاعر دی او نورو ډېرو شاعرانو د ده د سبک پیروي کړې ده. هغه په پښتو شاعرۍ کې د نازکخیال او موشګاف شاعر په توګه هم پېژندل کېږي.



## څرګندونې

**هلالي چغتايي:** د نهمې هجري پېړۍ د پای او د لسمې پېړۍ د پيل شاعر دی. هلالي چغتايي د پارس په استر آباد کې زېږېدلی او په هرات کې لوی شوی دی. خپل نوم يې بدر الدين دی. په ۹۳۶ هـ. ق. کال وژل شوی دی.

مولانا محمد اکرم غنيمت د مغولي اورنګزېب د واکمنی په وخت کې د لاهور د نواب محمد مکرم خان نديم او مصاحب و. ويل کېږي چې مولانا غنيمت د محمد مکرم خان د زوی عزيز او د هغه د پی مخي (معشوق) يعنې شاهد کيسه د نيرنګ عشق په نامه په نظم وليکله.

**هندي مکتب يا سبک:** دا چې په فارسي يا پښتو ادب او شاعرۍ کې د هندي مکتب اصطلاح سمه ده که د هندي سبک، څېړونکي بېلابېل نظرونه لري. اروابناد محمد حيدر ژوبل د هندي سبک ځانګړنې داسې شمېرلې دي:

۱ـ باريک مضمونونه، پېچلي افکار، غير طبيعي خيالونه، خاصې استعارې، کنايې او تشبيه ګانې او ډېره زياته خيالبافي.

۲ـ له ژوند نه شکايت، د ژوند د کرغېړنو اړخونو بيانول.

۳ـ د اغراق او مبالغې په ډول د غم، درد او خپګان څرګندولو ته تمايل.

۴ـ وياړ او غرور او په شعر کې د خپل مقام په لوړتيا فخر کول.

۵ـ له حده زياته مبالغه او اغراق.

**انتقادي متن:**

د پخوانيو کتابونو او د شاعرانو د ديوانونو د انتقادي متن ترتيب دې ته وايي چې له بېلابېلو قلمي او چاپي نسخو څخه يو داسې متن برابر شي چې کره او سم وي. په حقيقت کې له بېلابېلو نسخو د يوې کره نسخې برابرولو ته انتقادي متن وايي.



## فعالیتونه

۱ــ د دې متن یو یو پراګراف دې یو یو زده‌کوونکی په لوړ غږ ولولي او نور دې غوږ ورته کېږدي.

۲ــ زده‌کوونکي دې دغو پوښتنو ته ځوابونه ووايي:

ــ حمید مومند له کومو دوو نورو نومیالیو پښتنو شاعرانو سره د شهرت او محبوبیت له کبله په یو کتار کې یادېږي؟

ــ د حمید مومند دیوان په کوم نوم یادېږي؟

ــ عبدالحمید مومند د کوم سبک په شاعرانو کې شمېرل کېږي؟

۳ــ زده‌کوونکي دې په دغو څلورو ځوابونو کې یو سم ځواب په نښه کړي:

حمید مومند د دغو آثارو څښتن دی:

الف: دیوان (دُر و مرجان)، شرعة الاسلام، نیرنګ عشق، دستار نامه.

ب: دیوان (دُر و مرجان)، شرعة الاسلام، تاریخ مرصع، شاه او ګدا.

ج: دیوان (دُر و مرجان)، شرعة الاسلام، شاه او ګدا، نیرنګ عشق

د: شاه و ګدا، شرعة الاسلام، خیر البیان، نیرنګ عشق.

٤ــ څو تنه شاګردان دې پر دغو موضوع‌ګانو لنډې لنډې خبرې وکړي:

- د هندي مکتب ځانګړنې
- د حمید مومند د ترجمه شوو کتابونو ځانګړنې
- د حمید مومند آثار



## کورنۍ دنده

زده‌کوونکي دې له دې لوست څخه په استفاده، په پښتو ادب کې د حمید بابا د مقام په اړه لنډ څه ولیکي او په بله ورځ دې یې په ټولګي کې ولولي.

# احمد شاهي شهنامه






د احمد شاه بابا په هکله موکوم کتابونه او آثار لوستي دي؟

د احمد شاه بابا خپل شعرونه مو لوستي يا اورېدلي دي؟

احمد شاه بابا د نوي او معاصر افغانستان بنسټ ايښودونکی دی. د هغه په همت له افغان هوتکي پاڅون وروسته د نوي خپلواک افغان دولت بنسټونه کېښودل شول. احمد شاه بابا د دې په څنګ کې چې نوميالی واکمن و، عالم، فاضل او شاعر شخصيت هم و. له کتاب او علم سره يې د زړه مينه لرله او د واکمنۍ له بوختياوو سره سره يې کتاب او قلم هم د بوختياوو يوه برخه وه.

دلته د دغه افغان واکمن بابا په اړه د ليکل شوې شهنامې په اړه تاسو ته معلومات وړاندې کوو چې په هماغه زمانه کې د حافظ مرغزي په قلم کښل شوې ده.

((احمد شاهي شهنامه)) د لوی احمد شاه بابا د وخت د پېښو په اړه لیکل شوی منظوم اثر دی. دغه منظوم اثر د احمد شاه بابا په امر د هغه د مهال یو شاعر حافظ ګل محمد مرغزي لیکلی او په ۱۱۷۶هـ. ق. کال يې بشپړ کړی دی.

((شهنامه)) هغه اثر ته ویل کېږي چې تر ډېره حماسي بڼه لري، د واکمنانو، امیرانو، پاچاهانو او پهلوانانو د حالاتو او پوځي کارنامو په اړه کښل کېږي. شهنامه د ((شاهنامه)) په بڼه هم لیکل کېږي او منظومه بڼه لري، په پخوانیو ادبیاتو کې شهنامه لیکل دود و.

د حافظ مرغزي د احمد شاهي شهنامې یوازینۍ قلمي نسخه د انګلستان په ((بریټیش موزیم)) کې ساتل کېږي. د هماغې نسخې د مایکرو فلم له مخې لومړی په پېښور کې د پښتو اکېډیمۍ له لوري او په راوروسته کې په کندهار کې د استاد پوهاند عبدالشکور رشاد له پېژندنې او تعلیقاتو سره د ښاغلي محمد معصوم هوتک په سریزه او همت چاپ شوې ده.

لکه چې ارواښاد استاد رشاد لیکي: ((د حافظ ګل محمد مرغزي د زوکړې ځای او د خاړپوځو مېنه (مرغزه) کلی دی چې د پېښور شمال شرقي لور ته د صوابۍ په شاوخوا کې واقع دی.)) حافظ په یو غزل کې ویلي دي:

د مجلس یاران دې ولاړل رابه نه شي
که تل ژاړې د مرغز په ګورستان

د وطن په بېلتانه کې يې ویلي دي:

که مرغز لرم وطن / ترې جدا یم په دا تن
دا امید لرم له خدایه / که مې بوزي له دې ځایه
که سفر کړې د ختن / هېر به نه کړې خپل وطن
په کمند د غم اسیر یم / بې وطنه اوس فقیر یم
د ختن د ملک غزال یم / اوس بندي د غم په جال یم

حافظ ګل محمد په ۱۱۲۶هـ. ق. کال زېږېدلی او د شهنامې د بشپړولو پر کال ۱۱۷۶هـ. ق. يې عمر پنځوسو کالو ته رسېدلی و. داسې ښکاري چې هغه ډېر وخت له

وطنه لرې په پنجاب کې اوسېدلی دی. د هغه له شعرونو ښکاري چې په ډهلي کې له احمد شاهي پوځونو سره هم ملګری و. ژوند یې تر ۱۱۷۹هـ. ق. پورې باوري دی... د موجودې شهنامې د ټولو بیتونو شمېر څلورو زرو ته رسېږي.

د احمد شاهي شهنامې پر لومړۍ وقایه د حافظ مرغزي درې غزلې هم راغلي دي. یوه یې د بېلګې په توګه را اخلو:

| | |
|---|---|
| ګاه دې مخ کله دې ځنګ | ګاه دې صلحه ګاه دې جنګ |
| اوس خندا کوه خوشحال شه | له زړه لېرې کړه دا زنګ |
| که دولت درسره ډېر شي | خو به پاته شې ملنګ |
| تمام لاندې شو تر خاورو | ډېر یوسف غوندې خوشرنګ |
| له اشنا سره اشنا شه | که ته ډېر یې شوخ و شنګ |
| حافظ پاخه قلندر شه | او بس دا پرېږده آهنګ |

احمد شاهي شهنامه ۳٦ بحثونه او فصلونه لري او د احمد شاهي دورې د لومړیو شپاړسو کالو د پېښو په روښانولو او څرګندولو کې د یو ښه او ګټور اثر په توګه کار ورکوي. دغه منظوم اثر د مثنوي په ښه لیکل شوی او د هرې مسرې سېلابونه یې (اته) او کله کله (نهه) دي. تر ډېره حده یې نظم روان او ساده دی.

حافظ مرغزي له حمد، نعت او مناقبو وروسته خپله شهنامه په دغه سریزه (دیباچه) پیلوي:

| | |
|---|---|
| ته زما په شعر کړه ګوش | چې بلند شې په دا هوش |
| په تنظیم زما نظر کړه | ښه تازه پرې دا بصر کړه |
| پرې دماغ کړه معطر | چې مذکور که د کشور |
| دا دنیا ده لکه باغ | چې بهار شي ورك شي زاغ |
| شاهنامه ده رنګینه | د خوبۍ ده ګنجینه |
| په ترازو د عقل سنج | جواهر لري د ګنج |
| ښه درونه دي آبدار | که یې بادشاه شي خریدار |

شاهنامه ده نو عروس
سزاوار ده د بادشاه
چې فرمان د شهريار و
چې حافظ دې شاهنامه که
شاهنامه دې کار نگين
يکې حال دې د جهان وي
ښه مذکور دې که د جنګ
د بادشاه مې حال بيان که
ما بيان که په تفصيل
چې شاهنامه کړه ما اغازه
د طوسي چې شاهنامه ده
په پارسي ژبه بيان ده
اما دا وګوره ګنج
په زبان دراني
د احمد شاه در دران
چې کتاب مې شه تيار
په څو ورځې وم خاموش
معطر مې شه دماغ
شاهنامه کړه ما تياره
پښتنو د پاره واړه
ته پري وکړه ښه نظر
مور به نه يو دا به وينه
يادګاري ده په دنيا
خدايه ته شې مهربان
ښه کلام مې کړې شيرين

نه ثاني لري په طوس
دبدبه لري پر ماه
په زيبا ښکلي ګفتار و
په جهان دې دا نامه که
جوړ زيبا در ثمين
ښه ګنجونه دې عيان وي
چې پرې صاف شي د زړه زنګ
چې دا سير يې د جهان کا
په خپل ځای په قال و قيل
رنګينه راغله طنازه
ښه زيبا يې ښکلې جامه ده
په قلم کاغذ عيان ده
خوشنما درونه سنج
ښه بيان دی افغاني
يکې حال مې کړ بيان
په تحرير زما نګار
بيا مې شعر راغی په جوش
ښه تازه په سير د باغ
ډېر شېرينه ډېر آبداره
دا خواري مې شوه په غاړه
چې سنګين شي لکه غر
دا قصه به نور کوينه
له ما واوره دا وينا
چې شيرين مې شي زبان
چې تري څاڅي انګبين

د احمد شاهي شهنامې چاپي نسخه له (۷۰۰) زيات مخونه لري. له اصل متن مخکې سريزې او په پای کې د استاد پوهاند رشاد بشپړ تعليقات راغلي دي. په دغو تعليقاتو کې د هغو اشخاصو بشپړه پېژندنه راغلې ده چې په احمد شاهي شهنامه کې يې يادونه شوې ده او د احمد شاهي عصر مهم شخصيتونه وو.

د متن لنډيز:

احمد شاهي شهنامه د حافظ گل محمد مرغزي په قلم ليکل شوی تاريخي اثر دی. دغه مهم کتاب مؤلف خپله د احمد شاه بابا په لارښوونه ليکلی دی. دغه اثر په مثنوي بڼه نظم شوی، نظم يې روان او له تکلفه خالي دی.

احمد شاهي شهنامه د حافظ مرغزي له خوا په ۱۱۷٦هـ. ق. کال بشپړه شوې ده. د دغه مهم تاريخي اثر يوازينی قلمي نسخه د انگلستان په ((برېتيش موزيم)) کې خوندي ده او د هماغې نسخې له مايکرو فلم څخه په پېښور او کندهار کې چاپ او خپره شوې ده.

حافظ گل محمد مرغزي د پښتونخوا د صوابۍ شاوخوا د مرغز په کلي کې زېږېدلی و. په احمد شاهي شهنامه کې د احمد شاه بابا د پاچاهۍ، جنگونو او واکمنۍ نور حالات راغلي دي، په تېره بيا د هغه د واکمنۍ د لومړيو شپاړسو کلونو حالات پکې په پوره تفصيل سره راغلي دي.

خرگندونه

**مايکرو فلم**: زياتره قلمي نسخې چې د نړۍ په کتابتونونو او آرشيفونو کې ساتل کېږي، نو د نورو د استفادې لپاره ترې مايکرو فلم جوړېږي. مايکرو فلم د هغو نسخو عکاسي شوې بڼه وي او د يو شمېر تخنيکي وسايلو په مرسته ترې بڼه گټه اخيستل کېدای شي.



## فعالیتونه

۱ـ زده‌کوونکي دې یو ځل متن په چوپتیا سره ولولي، بیا دې د دې لوست د نظمونو برخه زده‌کوونکي په خپل خپل وار په لوړ غږ سره ولولي.

۲ـ زده‌کوونکي دې دغو پوښتنو ته ځواب ووایي:

- شهنامه څه ډول کتاب ته وایي؟
- احمد شاهي شهنامه د چا له خوا لیکل شوې ده؟
- احمد شاهي شهنامه د چا په امر او لارښوونه لیکل شوې ده؟

۳ـ دغو څلور ځوابه پوښتنو کې یو یې سم ځواب دی، هماغه سم ځواب په نښه کړئ:

ـ د احمد شاهي شهنامې د مؤلف نوم کوم یو دی؟

الف: خانعلوم

ب: پیر محمد کاکړ

ج: حافظ گل محمد مرغزي

د: شمس الدین کاکړ

ـ د احمد شاهي شهنامې یوازینی قلمي نسخه چېرته خوندي ده؟

الف: د کابل ملي ارشیف

ب: د پېښور پښتو اکاډمي

ج: بریټیش موزیم

د: د افغانستان د علومو اکاډمۍ کتابتون

٤ـ دوه تنه زده‌کوونکي دې پر دغو موضوعگانو پنځه پنځه دقیقې خبرې وکړي:

- احمد شاه بابا د نوي او معاصر افغانستان بنسټ ایښودونکی
- د احمد شاهي شهنامې تاریخي ارزښت



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د خپلو عمومي معلوماتو او د اضافي مطالعې پر بنسټ د لوی احمد شاه بابا د ژوند، شخصیت، کارنامو او شعرونو په اړه دوه مخیزه لیکنه ولیکي او په بله ورځ دې یې په پښتو ساعت کې خپلو ټولگیوالو ته واوروي.

# د پښتو ادبیاتو

## اوسنۍ (معاصره) دوره



په لسم او یوولسم ټولګي کې مو د پښتو ادبیاتو د تاریخ دوه مهمې دورې لوستي دي. په لسم ټولګي کې د پښتو ادب لرغونې دوره او په یوولسم ټولګي کې مو د پښتو ادب منځنۍ دوره لوستې ده. دغه لوست د پښتو ادب د اوسنۍ (معاصرې) دورې په اړه دی. دغه بحث د ادبیاتو د تاریخ بحث دی او د ادبیاتو په تاریخ کې د یوې ژبې او یو ولس ادبي ـ هنري آثار د خپل وخت د تاریخي ـ ټولنیزو حالاتو په پام کې ساتلو سره او د یو ولس د عمومي تاریخ د پېښو په رڼا کې باید مطالعه شي. په دغه څېړنه کې د ادب پوهنې د یوې مهمې څانګې په توګه (ادبي تاریخ) مطرح کېږي او لیکل کېږي. په ادبي تاریخ کې د یو ولس ادبي آثار په هر اړخیزه توګه د خپل تاریخي تسلسل په پام کې ساتلو سره ارزول کېږي او هنري ـ ادبي ارزښتونه یې څېړل کېږي. د پښتو ادبیاتو د اوسنۍ دورې په اړه په دغه لوست کې مو هم دې ټکو ته باید پام وي.

د پښتو ادب اوسنۍ یا معاصره دوره د پښتو ادبیاتو په تاریخ کې مهمه دوره ده. مخکې له دې چې په دې اړه خبرې وکړو چې د پښتو ادب اوسنۍ یا معاصره دوره له کوم مهال څخه پیلېږي، غوره به وي، دې ټکي ته تم شو چې د دغه نوي بهیر د پیلېدو په ځینو خاصو لاملونو او عواملو لنډې خبرې وکړو. دا هغه ټکي دي چې موږ ته به دا هم راڅرګنده کړي چې څنګه د پښتو ادب دغه معاصره دوره پیل شوه او دا کوم مهال و؟

په افغانستان او ټوله پښتونخوا کې د وخت او زمان د یو لړ بدلونونو، پرمختګونو او نوو پېښو په رڼا کې، داسې حالات رامنځته شول چې ادب ته یې هم یو نوی لوری ورکړ، څرنګه چې د زمان دغو حالاتو د ژوند پر هر اړخ خپل اغېز وکړ، ادبیات ترې هم په پوره توګه اغېزمن شوي دي. دغه نوي بدلونونه کوم کوم وو:

۱ــ د نړۍ له بېلابېلو برخو د تمدن د نوو پرمختیایي بېلګو راڅرګندېدل، پر دغه بهیر خپل اغېز وکړ. دغه بېلګې په ځانګړې توګه پر هندوستان او بیا پر افغانستان د انګرېزانو له ښکېلاک سره د نوو نښو نښانو په توګه راڅرګندې شوې. دغو استعماري (ښکېلاکي) موخو، د نورو اړخونو په څنګ کې د لویدیځې نړۍ د تمدن ځینې بېلګې هم یا له ځانه سره یوځای او یا له ځانه یو څه مخکې راواستولې. دغه اغېز پر ختیځو ښارو سربېره، له لویدیځو خواوو او د هغه هېوادونو له لوري هم د اغېز له نورو بڼو سره راڅرګند شو، په دې معنا چې د نوي ژوند او نوي تمدن نوې بېلګې او څرکونه موږ ته له نورو خواوو هم رارسېدلي دي.

د امیر دوست محمد خان او بیا د امیر شېر علي خان د واکمنۍ په دوران کې د نوي تمدن لومړۍ صنعتي بېلګې افغانستان ته هم راغلې. د وسلو فابریکه جوړه شوه. په ۱۲۸۲ هـ. ق. (۱۸۷۰م.) کال کې په افغانستان کې لومړۍ مطبعه فعاله شوه. په راوروسته کلونو کې (د امیر عبدالرحمن خان، امیر حبیب الله خان او غازي امان الله خان د واکمنیو په وختونو کې) مطبعو لازم پرمختګ وکړ. نورې فابریکې هم جوړې شوې، سینما او راډیو فعالې شوې او د تمدن نور نوي مظاهر (نمونې) د رارسېدو په حال کې وو.

استاد حبيبي په دې اړه ليکي: په دې دوره کې د اروپا د مدنيت صنعتي دوره پيل شوې وه او پر هندوستان باندې د انګرېزانو استعمار بشپړ شوی و، هندوستان ته د نوي مدنيت او صنعت اغېزې رارسېدلې وې. چاپخانې او د کتابونو د خپرولو وسيلې هم ډېرې شوې وې. انګرېزان له دغو ځيزونو سره د اباسين غاړو ته هم راورسېدل. دوی د پښتونخوا يو ستر فرهنګي مرکز يعنې پېښور ونيو او په ۱۸۳۹م. کال يې پر افغانستان هم يرغل وکړ.

۲_ په افغانستان کې لومړنۍ معلومه جريده د ((شمس النهار)) په نوم په ۱۲۹۰هـ. ق. (۱۸۷٤م.) کې خپره شوه. په دغه وخت کې ځينې کتابونه هم چاپ او خپاره شول، په پېښور او لاهور کې بيا د پښتو کتابونو د چاپولو بهير لاګړندی شو. د نوي تمدن، د کتاب د چاپ او د مجلو او جريدو د چاپ دغې چټکتيا پر ادبياتو او د ادبياتو پر بدلون او وده خپله اغېزه لرله.

د امير حبيب الله خان په وخت کې لومړی د مولوي عبدالرؤف کندهاري په مشرۍ د ((سراج الاخبار افغانستان)) په نوم جريده خپره شوه چې له يوې ګڼې وروسته يې د خپرېدو لړۍ بنده شوه. وريسې د افغانستان د ژورناليزم د پلار، نوميالي ليکوال او مبارز محمود طرزي په مشرۍ د ((سراج الاخبار افغانيه)) د جريدې خپرونې د پښتو ادب پر وده او بدلون لوی اغېز درلود.

۳_ په هېواد کې د نوو او عصري زده کړو پيل، د نوي ادبي يون لپاره يوه په زړه پورې پيلامه وه. په ۱۹۰۳م. کال کې په کابل کې ((حبيبيه ښوونځی)) جوړ شو او د نوو عصري مکتبونو جوړېدل ټولو ولايتونو ته هم وغځېدل. دې کار هم د پرمختګ نوې لارې چارې برابرې کړې.

٤_ د مشروطيت غورځنګ په افغانستان کې د نوي سياسي، کلتوري او ادبي بدلون نوی زيری له ځانه سره لاره. دغه غورځنګ له ۱۹۰۵م. کال څخه راپيلېږي. دغه حرکت په هېواد کې د داخلي استبداد او د زورواکۍ د ختمولو او د پرنګي له ښکېلاک څخه د وطن د خلاصون په بنيادونو جوړ شوی و. په دغه غورځنګ کې شامل زياتره مبارزان

علمي، ادبي او فرهنګي کسان وو، لکه: مولوي محمد سرور واصف کندهاری، کاکا عبدالعزيز الکوزی، مولوي عبدالواسع، مولوي عبدالرب، غلام محي الدين افغان، محمد انور بسمل، کاکا سيد احمد لودين، محمود طرزی، عبدالرحمن لودين، عبدالهادي داوی پرېشان او يو شمېر نور...

دغه غورځنګ هم زموږ پر اوسنيو ادبياتو خپل اغېز خپور کړ او په تېره بيا له بهرني ښکېلاک څخه د خلاصون د ولولو په راپارولو کې يې زياته ونډه واخيستله. پښتو ادبيات، د دغو او يو شمېر نورو ټکو په پام کې نيولو سره يوه نوي دوران ته داخلېږي او دا د پښتو ادب اوسنۍ يا معاصره دوره ده. دا چې دغه دوره په دقيق ډول له کوم مهال څخه پيلېږي، د پښتو د اوسنيو ادبياتو د څېړونکو له خوا بېلابېل نظرونه ورکړل شوي دي. نوميالی افغان څېړونکی محمد صديق روهي د دغو بېلابېلو نظرونو له راوړلو وروسته دې پايلې ته رسېږي.

د پښتو معاصر ادب په لره پښتونخوا کې د ۱۹۱۰م. کال شاوخوا د (افغان) جريدې په خپرېدلو سره پيلېږي. په دغه جريده کې د پښتو ادب نوي ډولونه او ژانرونه دود شول او راحت زاخيلي، فضل محمود مخفي، عبدالاکبر او نورو ليکوالو او شاعرانو د معاصر ادب زړي وکرل.

په افغانستان کې د سراج الاخبار د دويم ځل (۱۹۱۱م.) په خپرېدو سره د پښتو معاصر ادب بنسټ کېښودل شو.

په حقيقت کې د شلمې پېړۍ په رابرېدلو سره په افغانستان کې د معاصر ادب د پيلېدو لپاره عيني او ذهني شرايط برابر شوي وو. په دغه وخت کې معاصر ادب د يو متعهد او رسالتمن ادب په توګه د ټولنې په خدمت کې په کار واچول شو. ادبيات د يو معنوي مشال په توګه د ذهنونو د روښانولو لپاره استخدام شو. د دغه وخت يو شمېر نامتو شاعرانو او ليکوالو د ادبي تخليقاتو له لارې د ځانځانۍ، استعمار، خانخانۍ او استبداد پر ضد چټکه مبارزه کوله.

د پښتو ادب د اوسنۍ دورې يوه اساسي ځانګړنه داده چې په دغو شعري او نثري آثارو

کې د موضوع او فکر له پلوه نوې موضوعګانې ور داخلې شوې. د وخت عمده ارمانونه او هیلې د ادبي لیکنو او شعرونو محتوا شوه. د دې په څنګ کې د چوکاټ او فورم له پلوه هم یو لړ بدلونونه رامنځته شول. ادبي او هنري نثر ته پاملرنه واوښته، نوي ادبي ډولونه، لکه: لنډه کیسه، ناول، ډرامه او ننداره او نور ولیکل شول. د پخوانیو چوکاټونو په څنګ کې د شعر نوي چوکاټونه هم رامنځته شول او ازاد شعرونه هم دود شول.

د پښتو ادب د معاصرې دورې په لومړنیو لیکوالو او شاعرانو کې د دغو کسانو نومونه د یادولو وړ دي:

مولوي صالح محمد کندهاری، غلام محي الدین افغان، مولوي عبدالواسع کندهاری، عبدالعلي مستغني، عبدالهادي داوی، امین الله زمریالی او یو شمېر نور... په کوزه پښتونخوا کې د لومړي دوران نومیالی ادبي څېرې دا دي: فضل محمود مخفي، مولوي احمد، منشي احمد جان، میر احمد شاه رضواني، راحت زاخیلی، عبدالاکبر اکبر، عبدالمالک فدا، ماسټر عبدالکریم او یو شمېر نور...

زموږ یو شمېر څېړونکو د پښتو د معاصر ادب دوره هم په څو پړاوونو وېشلې ده او دغه راز په هره سیمه کې یې د ودې او پرمختګ پر ځانګړو شرایطو او امکاناتو بحثونه شوي دي. له هغو مشرانو، لیکوالو او شاعرانو څخه چې راتېر شو زموږ یو شمېر لیکوالو او شاعرانو په راوروسته وختونو کې خپلې ژبې او ادب ته د خپلو تلپاتې آثارو په لیکلو سره، نه هېرېدونکي خدمتونه کړي دي. دوی د نوي دوران او عصر له غوښتنو سره سم او د خپل هېواد، خپلو خلکو او خپلې ژبې د اړتیاوو په پام کې ساتلو سره نوي او په زړه پورې آثار ایجاد کړل. په دې لړ کې په افغانستان کې د دغو کسانو نومونه په خاص ډول د یادولو وړ دي:

عبدالحی حبیبي، قیام الدین خادم، ګل پاچا الفت، عبدالرؤف بېنوا، صدیق الله رښتین، عبدالشکور رشاد، محمد رفیق قانع، برهان الدین کشککي، عبدالرحمن پژواک، غلام جیلاني جلالي، محمد موسی شفیق، سیلاب ساپی، محمد جان فنا، سید شمس الدین

مجروح، سید حسن حسن، بهاؤالدین مجروح، حبیب الله تږی، مستوره شال، ابراهیم عطايي، دوست شینواری او ډېر نور...

دغه راز په پښتونخوا کې هم د دې دورې مهمې څېرې د یادولو وړ دي لکه:

کاکاجي صنوبر حسین مومند، سید رسول رسا، حمزه شینواری، عبدالغني خان، صاحبزاده محمد ادریس، عبدالخالق خلیق، نصر الله خان نصر، محمد اسلم خټک، رشید علي دهقان او یو شمېر نور...

د معاصر پښتو شعر د پیلامې د یوې بېلگې په توگه له ((سراج الاخبار افغانیه)) څخه د مولوي صالح محمد هوتك یو شعر را اخلو او د دغې دورې د پیلامې د یوې بېلگې په توگه یې لولو. سره له دې چې دا د عبدالهادي داوي پرېشان د دري شعر پښتو منظومه ژباړه ده، خو ډېره په زړه پورې بڼه لري، د ژباړې رنگ پکې نه ښکاري او د وخت یوه ډېره مهمه موضوع پکې ځای شوې ده، دا لا هغه وخت دی چې افغانستان بشپړه سیاسي خپلواکي نه لري او دغه شعر په همدغه دوران کې د سراج الاخبار په پاڼو کې خپور شوی دی

یو سحر زما تر غوږ شو له بلبله    په قفس کې یې ژړل دا یې ویله
چې بندي شوم د صیاد له سخته دله    ولې نه پوښتي څوك حال زما یو له بله
ولې نشته بې فغانه کارو بار زما
ولې حبس ابدي راغی په وار زما
نه محرم چې د زړه حال ورته بیان کم    نه مې وس چې خبرداره بلبلان کم
نه ملگري چې چمن ته یې روان کم    بیا بیان ورته د گل او د ریحان کم
خپل ډك زړه د ارمانو ورته خالي کم
ټول مرغان د چمنو په ځان حالي کم
چاته وژاړم، پر چا باندې فریاد کم    چاته خاورې پر خپل سر باندې باد کم
چاته وگورم په څه شي زړگی ښاد کم    د صیاد له لاسه چاته عرض و داد کم

څه راوشو چې د تور قفس بندي شوم
نه خلاصېږم په دا بند کې ابدي شوم
ولې زه له خپله سېله راجلا شوم ولې زه له خپل وطنه راجدا شوم
ولې زه په وير اخته په واويلا شوم کور و کلی مې شو پاتې خوار تنها شوم
کوم ظالم کړمه بندي خدای دې بندي کي
خدای دې ما غوندې اخته په جدايي کي
اوس به زه لکه ها نور په هوا تلمه په هوس د آزادۍ به نازېدمه
پر غونچو به د ګلانو موسېدمه ورځ په ورځ به غوړېدمه لوبېدمه
چا بندي کړم خدایه تې په ځان اخته کې
په قفس يې د زندان جګر سوخته کې
اوس به ګرځېدم آزاد په چمنو کې الوتم به په صحرا او په باغو کې
مست به ګرځېدم خوشحال په شګوفو کې ولې اوس يم په غمو په اندېښنو کې
چې بندي دې د قفس کړمه صياده
خدای دې ما غوندې بندي که اې آزاده
الغرض چې ده وهلې دا نارې د قفس له لاسه و په غلبلې
چې ناګاه د چمن باد راغی له کښې چې پر ونښت دا يې وواته له خولې
مګر دا باد د چمن د خوا راغلی
د شعر وروستی برخه چې اسې ملاله: صبر و آرام يې راڅخه وړی

په حسرت او په افسوس يې دا ويله و ګلشن ته يې کتل بيا يې ژړله
د قفس و دروازې ته يې ځغستله لار يې نه وه وزرونه يې کرپوله
په هوا شو سر يې ونښت له قفسه
وينې توی شوې سوړ پوړ ولوېد له هوسه

سر تر پایه په سرو وینو کې غرقاب و      ځان بايللی، زره زخمي، حال يې خراب و
يا بې هوښه، يا پر هوښ، په اضطراب و      چې پر هوښ به شو گويان به په دا باب و:

سر مې بايلو په هوا د آزادۍ
شکر شکر شوم فدا د آزادۍ

په افغانستان کې د پښتو د معاصرو ادبياتو د شعر او نظم د برخې په مطالعه کې دغه شعر خاص ارزښت لري. استاد روهي په دې اړه وايي: (په قفس کې بلبل) په سمبوليکه او رمزي ژبه د خپلواکۍ غوښتنې جذبات څرگندوي او خلك فداکارۍ ته رابولي. د پوهاند حبيبي په وينا، دا شعر دومره مقبول و چې په کندهار کې حتا د ښځو خولې ته هم ولوېده، خوله په خوله اوربدل کېده او د وطن له مينې به يې ژړل.

((په قفس کې بلبل)) د پښتو د معاصر ادب يوه غوره بېلگه ده. په هغه کې يو مهم ملي ارمان په ښکلي عاطفي رنگ کې منعکس شوی دی. په دغه شعر کې زايد الفاظ نشته، د اصطلاحاتو له پلوه غني او ژبه يې طبيعي او له محاورې سره سمه ده. په لومړي شعر کې د تصوير بشپړتيا، منطقي انسجام او ښه پای، د رمز په ژبه د اسارت او مريي توب پر ضد اعتراض او د طبيعت د ښکلا انځور پر دغه شعر د جاودانه گۍ مهر لگوي.

د متن لنډيز:

د پښتو ادبياتو په تاريخ کې له لرغوني او منځنۍ دورې وروسته اوسنۍ يا معاصره دوره د خاصې پاملرنې وړ ده. دغه دوره د شلمې پېړۍ له پيلامې سره پيلېږي. د وخت او زمان نوې اغېزې، د نړۍ د نوي تمدن اغېز، پر افغانستان د انگرېزانو يرغل او د دې يرغل پر وړاندې د خلکو پاڅون، د مطبوعاتو په ډگر کې نوي پرمختگونه او نور بېلابېل عوامل د دې سبب شول چې په ادبياتو کې هم بدلونونه رامنځته شي. دغه بدلون هم د ادبياتو موضوع او محتوا ته نوی رنگ ورکړ او هم يې نوي ادبي ډولونه رامنځته کړل او د چوکاټ يا فورم له پلوه يې هم بدلونونه وموندل. د پښتو د معاصرو ادبياتو دوره د پښتو په ادبي تاريخ کې د يو نوي بدلون پيلامه ده. په دې دوره کې گڼ او مهم آثار وليکل شول او د ادبياتو په بهير کې نوي پرمختگونه رامنځته شول. د معاصرو ادبياتو تاريخ يو شمېر تلپاتې ادبي څېرې په خپلو پاڼو کې ثبت کړې دي.



## څرګندونې

**محمود طرزي:** د افغانستان پیاوړی لیکوال، ژورنالیست او سیاسي مبارز و. د غلام محمد طرزي زوی دی. په زلمیتوب کې یې کورنی له افغانستان څخه د امیر عبدالرحمن خان په وخت کې تبعید شوه. هندوستان او ترکیې ته لاړل. د امیر حبیب الله خان په وخت کې بېرته افغانستان ته راستون شو. د سراج الاخبار افغانیه په نوم یې یوه مهمه جریده تاسیس کړه چې هم د افغانستان د ژورنالیزم په تاریخ کې ځانګړی ځای لري او هم د نوي او معاصر ادب په پرمختګ کې. د غازي امان الله خان خسر، د مشروطیت د غورځنګ یوه مخکښه څېره او د هغه د واکمنۍ په دوره کې د یو وخت لپاره د بهرنیو چارو وزیر و. د غازي امان الله خان پر ضد د داخلي اړو دوړ په وخت کې له افغانستان څخه وتلو ته اړ شو. ترکیې ته لاړ او هماغلته وفات شو. د ډېرو آثارو لیکوال او ژباړونکی دی. د افغانستان د ژورنالیزم د پلار په نوم شهرت لري.

**د مشروطیت غورځنګ:** د افغانستان د سیاسي مبارزو په معاصر تاریخ کې د افغانستان د مشروطه غوښتونکو غورځنګ مخکښ مقام لري. د امیر حبیب الله خان د واکمنۍ په دوران کې د یو شمېر روڼ اندو پوهانو، لیکوالو او مبارزینو له لوري دغه سیاسي ملي غورځنګ تاسیس شو. د دې غورځنګ په اساسي هدفونو د استبداد او مطلقه واکمنۍ پر ځای د قانون واکمني، د انګرېزانو له ښکېلاک څخه د هېواد ژغورنه او د خلکو د ژوند سوکالي، تعلیم ته پاملرنه او داسې نور اهداف د یادولو وړ دي. دغه غورځنګ د امیر حبیب الله خان د واکمنۍ په دوران کې سخت وځپل شو. مشران یې یا اعدام او یا بندیان شول. د غازي امان الله خان په وخت کې همدغو منورینو د هېواد د چارو په سمبالښت کې فعاله ونډه واخیستله.

**عیني او ذهني شرایط:** د اجتماعي او فکري مسایلو په لړ کې په ټولنه کې د عیني او ذهني شرایطو د برابرېدلو خبره کېږي. له دې څخه هدف دا دی چې د یو کار د پیل لپاره، د یو حرکت، نهضت او پروګرام د پیل لپاره د ټولنې شرایط او امکانات څه دي؟ آیا ټولنه له ذهني پلوه دې کار ته چمتو ده؟ د دې خلکو له فکر او نظر سره دغه پروګرام برابر دی، یا یې ذهن ورته چمتو شوی دی؟ عیني شرایط هم همداسې وګڼئ. آیا د ټولنې موجود واقعیتونه څه دي؟ په کوم اقتصادي، اجتماعي حالت کې ده. د ودې په کوم پړاو کې ده؟ عیني شرایط تر ډېره د ټولنې د مادي اړخونو په څېړنه او ذهني شرایط یې د فکري او نظري اړخونو په څېړنې پورې اړه پیدا کوي، خو دواړه یو په بل پورې تړلي دي.

**کم (کړم)**: په ځینو شعرونو کې د لیکدود له مخې لهجوي اغېزې راڅرګندېږي، یا شاعران ځینې کلمې هغه ډول لیکي، چې وایي یې. لکه په دې لوست کې نورې داسې کلمې: کې (کړې)، دې (دې یې) تې (ته یې) او نورې...



## فعالیتونه

۱_ د مولوي صالح محمد هوتک د شعر یوه یوه برخه دې بېلابېل زده‌کوونکي په لوړ غږ ولولي او په سمه توګه دې یې ادا کړي.

۲_ زده‌کوونکي دې دغو پوښتنو ته ځوابونه ووایي.

- د پښتو معاصر ادب له کوم وخت څخه پیلېږي؟
- محمود طرزي په کوم نوم شهرت لري؟
- (سراج الاخبار افغانستان) او (سراج الاخبار افغانیه) څه توپیر لري؟
- د افغانستان د مشروطیت غورځنګ د کوم واکمن په وخت کې جوړ شو؟
- د مشروطیت د غورځنګ سیاسي او ملي هدفونه کوم کوم وو؟

۳_ د پښتو د معاصرو ادبیاتو د دورې د یو شمېر مخکښو او نومیالیو څېرو نومونه واخلئ. هر شاګرد دې یو یو نوم یادوي او د ټولګي یو زده‌کوونکی دې هغه په یو پاڼه کې یادداشت کوي. کېدای شي زده‌کوونکي تکرار شي او نوي نوي نومونه ووایي. که کومو شاګردانو ته د هغو لیکوالو د کتابونو نومونه یاد وو، هغه دې هم یادوي او په پاڼه کې دې یې لیکي. هر هغه شاګرد چې ډېر نومونه او کتابونه یاد کړل، د دې لوست د (ممتاز شاګرد) په نوم دې ونومول شي. کېدای شي شاګردان ځینې څېرې هم یادې کړي چې په دې لوست کې یې نومونه نه دي راغلي.

٤_ زده‌کوونکي دې د دغو دوو موضوعاتو په اړه لنډې لنډې خبرې وکړي:

- د افغانستان د معاصرو ادبیاتو د دورې ځانګړنې
- معاصر ادب او د معاصر دوران پېښې



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د مولوي صالح محمد هوتک د ((په قفس کې بلبل)) په اړه یو مخ لیکنه وکړي او ارزښت دې یې هم څرګند کړي.

# غني خان ـ نه هېرېدونکی شاعر



ـ د غني خان په اړه مو څه لوستي دي؟

ـ د غني خان کوم شعر مو یاد دی؟

د پښتو په معاصرو شاعرانو کې غني خان د اوچت نامه خښتن دی. تاسو تر اوسه پورې د معاصر پښتو شعر د ځینو څېرو په اړه معلومات ترلاسه کړي دي. په دې لوست کې تاسو ته د غني خان د ژوند او د هغه د شعر د ځانګړتیاوو په اړه خبرې کوو. د هغه د شعرونو څو نمونې هم لولو.

په لوست کې به تاسو ته څرګنده شي چې زموږ دغه وتلی شاعر زموږ د اوسني ادبي تاریخ په پاڼو کې د کوم دریځ او مقام لرونکی دی؟

عبدالغني خان غني د پښتنو د نوميالي مشر او د پښتنو او د هند د لويې نيمې وچې د خپلواکۍ د ستر مبارز فخر افغان خان عبدالغفار خان زوی دی. په ۱۹۱٤م. کال کې د پښتونخوا د هشنغر په اتمانزو کې زېږېدلی دی. په پنځه کلنۍ کې يې مور له نړۍ سترگې پټې کړې او پلار يې د ژوند اوږده کلونه د هندوستان د انگرېزي حکومت په زندانونو کې تېر کړل. له دغو ناوړو حالاتو سره سره غني خان په دې وتوانېده چې زده کړې پيل او دوام ورته ورکړي.

لومړنۍ زده کړې يې د اتمانزو په آزاد ښوونځي کې ترسره کړې. استاد بېنوا په دې اړه ليکي: ((پاچا خان ځکه خپل زامن دغه د غريبانو ښوونځي ته واستول چې خلك ونه وايي چې باچا خان د خپلو او نورو د زامنو ترمنځ توپير کوي، خپل زامن معتبر ښوونځي ته بيايي او د نورو زامن د غريبانو ښوونځي ته استوي.))

غني خان د نورو زده کړو لپاره انگلستان او امريکې ته هم لاړ، خو څرنگه چې مبارز پلار يې بيا بيا د پرنگيانو زنداني کېده، نو زده کړې يې نيمگړې پاتې شوې او بېرته راستون شو. څه موده يې د پاچا خان په لارښوونه د ټاگور په نړيوال پوهنتون کې هم زده کړې وکړې.

له زده کړو وروسته يې څه موده د بورې جوړولو په يوه فابريکه کې د انجينر په توگه کار وکړ او بيا يې د خپلو ځمکو سرپرستي کوله.

له سياسي هڅو سره خو يې د ژوند له پيله گډ مزل کړی و، د پاچا خان د سياسي نهضت ((خدايي خدمتگار)) د ملاتړ لپاره يې د ((زلمي پښتون)) په نوم د ځوانانو يو نهضت هم جوړ کړ.

په ۱۹٤٥م. کال کې له پښتونخوا څخه د هندوستان پارلمان ته انتخاب شو او د پارلمان د ځوان غړي په توگه ښه وځلېد. د هندوستان له آزادۍ او بيا وېشلو وروسته غني خان ونيول شو او شپږ کاله يې د پاکستان په زندانونو کې تېر کړل.

عبدالغني خان د پښتو نوميالی شاعر و. د خپل ژوند په اوږدو کې يې د سياسي مبارزې په څنگ کې لوړه شاعري هم کړې ده. د شعرونو دغه ټولگې يې چاپ شوې دي:

۱ــ د پنجرې چغار: د غني خان د شعر لومړنۍ ټولګه ده. د زندان له فریادونو یې شعرونه جوړ کړي دي او په ۱۹۵۳م. کال کې یې دغه مجموعه د هري پور په جیل کې بشپړه کړې ده. په ۱۹۵٦م. کال کې په پېښور کې چاپ شوې ده.

۲ــ د غني پلوشې: دا مجموعه په ۱۳۳۹ هـ. ش. کال په کابل کې د پښتو ټولنې له خوا چاپ شوې ده.

۳ــ پانوس: دغه کتاب په ۱۹۷۸م. کال په پېښور کې چاپ شوی دی، ((د پنجرې چغار)) او پلوشې سربېره پکې نوي شعرونه هم راغلي دي.

٤ــ د غني کلیات: د غني د شاعرۍ کلیات په ۱۳٦٤ هـ. ش. کال په کابل کې چاپ او خپاره شوي دي.

د پښتو دغه نومیالي شاعر په ۱۹۹٦م کال کې په پېښور کې له نړۍ سترګې پټې کړي. غني په معاصره پښتو شاعرۍ کې د یوه ځانګړي دریځ او خاص سبک شاعر دی. د هغه شاعري په نوې پښتو شاعرۍ کې د یو ځلند مقام لرونکې ده. لکه چې استاد الفت لیکي: ((زه د پښتو په اوسنیو شاعرانو کې څو تنه د ګوتو په شمار پېژنم چې هر یو د خپل ادبي سبک او د خپلو افکارو او خیالاتو په لحاظ ممتاز صفتونه لري او په بېلابېلو لحاظونو یو له بل نه او بل له بل نه ښه دي. یو د غزل استاد دی، بل د ملي او وطني احساس په راویښولو کې د یوې برخې خاوند دی، د چا اجتماعي افکار او خیالات ډېر عالي دي او د چا رندانه سندرې ډېرې ښکلې او په زړه پورې دي. د غني خان په اشعارو کې چې څه شی زما ډېر خوښېږي، هغه د فکر او خیال آزادي او له تقلید څخه سرکښي ده.))

د غني خان شاعري د یو شمېر ځانګړنو لرونکې ده چې ځینو ته یې پاملرنه کوو:

۱ــ له هېواد سره مینه او له خلکو سره یې مینه او له آزادۍ او آبادۍ سره یې مینه د پښتو شاعرۍ په بهیر کې یوه اساسي موضوع وه او ده. د غني شاعري هم په دې برخه کې د ستاینې وړ ځای لري. په عمومي ډول د ټول هندوستان او دغه راز د پښتونخوا پر خاوره د پرنګي د ښکېلاک پر وړاندې د وطنپالو شاعرانو د شعرونو هنګامې زموږ د ولس د احساساتو او ولولو په راویښولو کې خپل ځانګړی ځای لري، لکه چې یو څېړونکی وایي: ((په دغه دوره کې (کله چې د هند پر لویه نیمه وچه او پښتونخوا د پرنګي ښکېلاک خپور و)

د قامي شاعرانو يو مضبوطه ډله لګیا وه، د قام حوصلې يې اوچتولې. په دغه ډله کې ډېر نوميالي شاعران شامل وو، لکه: فضل محمود مخفي، عبدالمالک فدا، حبيب الله کاکا، فضل الرحيم ساقي، عبدالاکبر خان اکبر، شاد محمد مېړی، الف جانه خټکه او ډېر نور، خو په دغه ډله کې يو داسې شاه زلمی هم شامل و چې د هغه د شاعرۍ يوه ځلانده لاره وه، ځانله رنګ يې و او که زه ووايم چې دغه شاه زلمی شاعر د دغې ډلې سرخېل و نو بې ځايه به نه وي... هغه ځوان چې کله به لېونی فلسفي شو، کله به غني شو او کله به غني خان...» په دې لړ کې د غني خان ډېر شعرونه د غور وړ دي، خو دغه يو بيت يې د ډېرو ځواب وايي:

چې خازې شنې مې په قبر وې ولاړې
که غلام مړ وم، راځئ توکئ پرې لاړې

۲_ د غني د شاعرۍ، يا د هغه د شعري سبک يو بل عمده خصوصيت دا دی چې که هغه هر څه وايي، په صداقت او زيات صراحت يې وايي، غني خان ته که د خپل ځان او يا بل هر چا په وړاندې کوم فکر او نظر پيدا شوی دی، نو په هماغه بڼه يې په ښکاره بيان کړی دی. هغه خپل پلار ته په يو ليک کې ليکي:

| | |
|---|---|
| ستا خطونه ټول زما سر ته پراته دي | زه يې لولم هره شپه دوبار دوباره |
| کله خاندم کله ژاړم لېونی يم | ای زما په بند کې پروت غريبه پلاره |
| خدای به رحم و په تا باندې لږ کړي | بل ښه زوی به يې وکتلی ستا د پاره |
| چې په تا کې کوم جوهر دی ما کې نشته | ستا نېکي زما بدۍ دواړه بې شماره |
| ته سالار يې د کاروان په نېغه لار ځې | زه کوږ ځغلم لکه او ښه بې مهاره |
| ستا د زړه فوارې ډکې دي له مينې | زما زړه وچ کوهی نه وهي يو داره |

د (خانانو) په نوم په يو شعر کې پر پښتنو انتقاد کوي او د بدو رواجونو، بدو کړو وړو، خپلمنځي بديو، تربګنيو او نورو ناخوالو غندنه يې په ډېره ښکاره توګه کوي.

۳_ د غني د شاعرۍ بله ځانګړنه دا ده چې هغه د ژوند په اړه د خاصو نظرياتو څښتن دی. د ژوند د پېښو په هکله هم هغه ژور فکر لري، همدغه فکر او ژور نظر هغه د فلسفي شاعر په نامه مشهور کړی دی.

٤_ کومه بله خبره چې د غني په شاعرۍ کې د زياتې پاملرنې وړ ده، هغه د غني د شاعرۍ

د ((طنز)) برخه ده. دا په حقيقت کې هغه برخه ده چې زموږ د دغه شاعر د کلام د مالګې په توګه د شعر خوند او مزه زياتوي. دغه ډول شعرونه له ټوکو او خندا سره مهم موضوعات په زړه پورې کوي او بيا يې د شعر په ښکلا کې نغاړي. هغه د طنز، خندا او ټوکو په قالب کې د وخت اساسي موضوعات ځايوي. دغه شعرونه که په لومړي نظر خندوونکي ښکاره شي، خو په ژورو کې يې هغه غوسه پټه وي چې د خپل ولس د ناخوالو، نيمګړتياوو او ناوړتياوو له امله ورپيدا شوې وي. د غني طنزيه شاعري، د هغه د انتقادي شاعرۍ مرکزي برخه جوړوي.

د غني خان د شعرونو د بېلګو په توګه د هغه دوه شعرونه لولو. لومړنی شعر يې يوه وطني ترانه ده چې له خپلې خاورې سره د مينې ولولې پکې پرتې دي:

## اې زما وطنه!

اې زما وطنه د لعلونو خزانې زما
ستا هره دره کې دي د تورو نښانې زما
زه يم ستا د خاورې ته زما د مينې جوړ يې
ته مې د غيرت او د پښتو رنګينې جوړ يې
ته مې د نيکه او د بابا د وينې جوړ يې
ستا زړه کې ويدې دي ټولې تللې زمانې زما
اې زما وطنه د لعلونو خزانې زما
سترګې مې لوګی شه ستا د خاورو د کورونو نه
عقل مې ايرې شه ستا د پاره د فکرونو نه
ځار شمه قربان شم ستا د غرونو د سيندونو نه
ستا هره دره کې دي د تورو نښانې زما
اې زما وطنه د لعلونو خزانې زما
ستا عزت چې نه وي زه به نوم او عزت څه کړمه
ته چې خوار و زار يې زه به خوب او راحت څه کړمه
ستا سر چې وي ټيټ نو زه به شان او شوکت څه کړمه
مسته به دې خاوره کړم په وينه مستانې زما
اې زما وطنه د لعلونو خزانې زما

يا خو به دې سيال كړمه وطنه د جهان
يا به ستا په پښو كې تورې خاورې كړمه ځان
زه به درېٍ وړې شم خو تا به كړم ودان
نر يمه پښتون يم تا ته يادې افسانې زما
اې زما وطنه د لعلونو خزانې زما

د غني خان د شعر دويمه بېلګه هم ډېره په زړه پورې ده. په دې شعر كې په حقيقت كې د خپلواكۍ لپاره د بې توپكه مبارزې يا د نه تشدد د مبارزې پر ټكو خبره شوې ده. پاچا خان د هند له يو شمېر نورو آزادي غوښتونكو مبارزينو سره يوځاى د ((عدم تشدد)) پر مبارزه ټينګار كاوه. د هغوى په نظر دا د مبارزې او مقاومت تر ټولو غوره لاره وه. دغه بې وسلې مبارزه او مقاومت په خپل وخت كې پوره اغېزمن و. غني خان په دې شعر كې همدغو ټكو ته اشاره كړې ده او د فخر افغان پاچا خان د مبارزې شاعرانه انځورګري يې كړې ده.

## په مردان مارش د پاچا خان

راشه اې خوشحال بابا — اې خالده وګوره
پاڅه علي مرتضی — دا تماشه ووينه
جنګ له دى منصور روان
توپ او نه تفنګ لري
نه د تورو پرك لري
نه د زغرو شرنګ لري
زور د دښمن نه ويني — داسې لېونى روان
دار او رسن نه ويني — دا د مستانو خان
دا د پښتنو ملنګ — څه بادشاهي رنګ لري
جنګ له دى منصور روان
توپ او نه تفنګ لري

سپین مخ د لیلی ویني  دشت بیابان نه ویني
زړه یې د یو ارمانه ډک  غم او ارمان نه ویني
سرې د باتور سترګې یې  مینه رنګارنګ لري

جنګ له دی منصور روان
توپ او نه تفنګ لري

تاج یې د اغزو په سر  مست لکه مجنون روان
نوم د پښتنو ګټي  زوی دی د پښتون روان
نر دا د نرانو خان  څه غیرت او ننګ لري

جنګ له دی منصور روان
توپ او نه تفنګ لري

سر یې کېښود خاورو کې  مرګ له یې سینه ورکړله
د پښتون د سر صدقه یې  خپله وینه ورکړله
وې هر څه مې د قام دي  والله هر څه چې ملنګ لري

جنګ له دی منصور روان
توپ او نه تفنګ لري

اې د پښتنو بچو  دا میدان مو هېر نه شي
سپین سر یې د وینو ډک  هغه خان مو هېر نه شي
پروت دی دلته خاورو کې  دا مکان مو هېر نه شي
پاڅئ ننګ پرې وکړئ  خداېږو ډېر په تاسو ننګ لري

جنګ له دی منصور روان
توپ او نه تفنګ لري
نه د تورو پړک لري
نه د زغرو شرنګ لري

د متن لنډيز:

غني خان د معاصر او نوي پښتو شعر له مخکښو څېرو څخه دی. هغه د نوميالي آزادي غوښتونکي او مبارز فخر افغان عبدالغفار خان (پاچا خان) زوی او په ۱۹۱٤م. کې زېږېدلی دی. د خپلې خاورې د آزادۍ او سوکالۍ لپاره يې په ملي مبارزه کې هم ګډون کړی او د ((پښتون زلمي)) په نوم يو غورځنګ يې جوړ کړی و. د پښتو شاعرۍ په وده کې يې له نوښته ډکې هڅې کړې، پياوړي او ښکلي شاعرانه آثار يې موږ ته راپرېښي دي. په کتابونو کې يې: ((د پنجرې چغار))، ((د غني پلوشې)) او ((پانوس)) د پوره شهرت لرونکي دي. د شعرونو ټوله مجموعه يې ((د غني کليات)) په نوم په کابل کې چاپ شوې دي.




خدايي خدمتګار: دا د هغه ملي اصلاحي غورځنګ نوم دی چې د فخر افغان پاچا خان او د هغه د ملګرو له خوا په پښتونخوا کې جوړ شو. له دغه حرکت مخکې په ۱۹۲۱م. کال کې هغه د ((انجمن اصلاح الافاغنه)) په نوم يو نهضت جوړ کړ چې د پښتنو په بېدارۍ او د پښتني ټولنې له بدو رواجونو او بدمرغيو سره يې نه ستړې کېدونکې مبارزه وکړه. دغه حرکت په ۱۹۲۹م. کال کې د ((خدايي خدمتګارو)) په نوم ونومول شو او د خپلې خاورې د آزادۍ په څنګ کې يې بيا هم د خپلې ټولنې اصلاحي پروګرامونو ته اساسي برخه ورکړې وه.

دغه ملي اصلاحي نهضت د پښتو ادبياتو په وده کې هم پوره ونډه لرله او ډېر وتلي او پياوړي شاعران او مهم آثار يې رامنځته کړل.

سبک: هغې ځانګړې شېوې یا لارې ته ویل کېږي چې د یو کار د ترسره کولو او د یو څه شي په جوړولو کې کارول کېږي. اسلوب او قاعده یې هم ګڼلی شو. په ادبي اصطلاحاتو کې سبک هغه ځانګړنې دي چې د ادبي او هنري آثارو د بیان، ودې او د لیکنې او هستونې د ډول او لارې، محتوایي ارزښتونو او نورو په برخه کې یو اثر له نورو څخه جلا کوي. په حقیقت کې سبک د یو اثر او یا یو لیکوال د آثارو د ځانګړنو او مشخصاتو ټولګه ده.

فلسفي شاعر: غني خان ځینو لیکوالو په دې نامه هم یاد کړی دی. د دې لپاره چې په شعرونو کې یې د ژورو فلسفي پوښتنو او مطالبو ډېرې نمونې شته دي. د هغه ډېر شعرونه د یو ډول لېوني بغاوت بېلګې دي چې فلسفي رنګ هم لري. له همدې کبله ځینو لیکوالو لیونی فلسفي بللی دی.

طنزیه شعر: هغه شعر ته ویل شوی چې د طنز او مزاح رنګ ولري. په دغه ډول شعرونو کې ژور اجتماعي او انتقادي مطالب د خندا او ټوکو په قالبونو کې رانغاړل کېږي. په دې شعرونو کې ترخې خبرې، په خوږه بڼه کېږي او یا دا چې ترخه وینا په خوږو کې رانغاړل کېږي. پر خلکو د دې ډول شعرونو او لیکنو اغېز زیات وي. له څرګندو او ترخو حقیقتونو څخه دغه ډول بیان ډېر په زړه پورې او اغېزمن راځي.




۱ـ زده‌کوونکي دې، د لوست د متن او څرګندونو په پام کې ساتلو سره دغو پوښتنو ته ځواب ووایي:

- پاچا خان ولې خپل زوی غني خان، د اتمانزو آزاد ښوونځي ته د زده کړو لپاره واستاوه؟

- ادبي سبک څه ته وايي؟
- پاچا خان د ((انجمن اصلاح الافاغنه)) او ((خدايي خدمتگار)) غورځنگ د کومو هدفونو لپاره جوړ کړل؟
- غني خان ته ولې ځينو ليکوالو د فلسفي شاعر او لېوني فلسفي نوم ورکړی دی؟
- طنزيه شعر څه ډول شعر ته وايي؟

۲ـ د غني خان د شعر مهمې څلور ځانگړنې او يا د هغه د سبک خصوصيات دې څلور تنه زده‌کوونکي په خپل خپل وار خپلو ټولگيوالو ته تشريح کړي.

۳ـ د غني خان د کتابونو په اړه دې يو يو زده‌کوونکی لنډې لنډې خبرې وکړي، يعنې په لنډيز سره دې يې يو يو معرفي کړي.

گرامري برخه:

٤ـ د دې لوست (لس ـ لس) صفتونه دې، هر زده‌کوونکی په خپله کتابچه کې وليکي، له لومړي زده‌کوونکي څخه دې لوستل پيل شي، دويم زده‌کوونکی دې تکراري صفتونه نه وايي او همداسې دې تر وروستي شاگرده پورې د لوست د صفتونو (ستاينومونو) لوستل دوام وکړي.




زده‌کوونکي دې د غني خان دغه شعر ولولي:

جنگ له دی منصور روان          توپ او نه تفنگ لري

او بيا دې د پاچا خان د نه تاوتريخوالي (عدم تشدد) د نظريې په اړه چې په لوست کې پرې خبرې شوي او د دې شعر په اړه لږ تر لږه يو مخيزه مقاله وليکي.

# په بهر کې پښتو پوهان



د پښتو ژبې او ادبیاتو څېړونکي، له هېواد څخه بهر د نړۍ په نورو هېوادونو کې هم شته دي. له ډېر وخت راهیسې دغو څېړونکو د افغانستان او په ځانګړې توګه د پښتو او پښتنو په اړه څېړنې کړې او خپرې کړې یې دي.

دغو کسانو چې موږ یې ختیځ پوهان او پښتو پوهان بولو، د پښتنو د تاریخ، ژبې او ادب په اړه داسې څېړنې کړي چې پښتو او پښتانه یې په ټوله نړۍ کې ښه معرفي کړي او پېژندلي دي.

په دې لوست کې به تاسو د هغوی د کار پر ارزښت خبر شئ او دغه راز به د یو شو نامتو پښتو پوهانو د نومونو او کارونو په اړه معلومات تر لاسه کړئ.

ختیځ پوهان د نړۍ د بېلابېلو هېوادونو هغه پوهان او څېړونکي دي چې د ختیځو هېوادونو د ولسونو او د دغو ولسونو د ژوند، تاریخ، کلتور، ژبو او ادب په اړه څېړنې کوي. پښتو پوهان هم د همدغو ختیځپوهانو یوه داسې برخه ده چې د پښتنو د ژوند، تاریخ، کلتور او په ځانګړې توګه د پښتو ژبې او ادبیاتو په اړه څېړنې ګروېږنې کوي.

په یو شمېر لویدیځو هېوادونو کې له ډېرې زمانې راهیسې داسې پوهان او څېړونکي پېژنو چې په بېلابېلو هدفونو د بېلابېلو اړتیاوو له مخې یې یا پښتو ژبه زده کړې، نورو ته یې ورزده کړې او د پښتو او پښتنو د بېلابېلو اړخونو په اړه یې ارزښتناکې څېړنې کړې دي. یا دا چې په عمومي توګه یې د پښتنو د تاریخ او کلتور په کومه برخه کې څېړنې کړې دي او بې له دې چې پښتو یې ښه زده وي، د پښتنو د ژوند تاریخ او کلتور له یوې ځانګړې برخې سره یې لېوالتیا پیدا شوې ده او په همدغه برخه کې یې څېړنې کړې دي.

د ختیځ پوهانو او پښتو پوهانو کار موږ ته له ډېرو اړخونو څخه د قدر او پاملرنې وړ دی. لومړۍ خبره خو دا ده چې د همدوی په وسیله پښتانه پښتو ژبه، پښتني ټولنه او کلتور او د دې ولس ادبیات د دغو پښتو پوهانو له لورې د نړۍ په ګوټ ګوټ کې پېژندل شوي دي. د دوی په قلم د یو شمېر نومیالیو پښتنو لیکوالو آثار په نورو ژبو ژباړل شوي او دغه لومړنۍ ژباړې د پښتنو او نورې نړۍ یا نورو ولسونو ترمنځ د اړیکو د یو ډېر پیاوړي مزي په توګه غزول شوي دي. دغه راز دغو کسانو د پښتو آثارو په خوندي کولو او راسپړلو کې هم پوره ونډه لرلې ده. ډېر پښتانه لیکوال دې ته اړ شوي چې د همدغو ختیځ پوهانو له څېړنو څخه د پښتو ژبې او پښتو ادب په اړه ګټه واخلي.

له پښتو او پښتنو سره د لوېدیځې نړۍ لېوالتیا په لومړي ګام کې دغې سیمې ته د ښکېلاکي موخو د ترسره کولو په څنګ کې د پام وړ ده. په دې لړ کې پوهاند حبیب الله تږی د کتاب ((د مشرق په آسمان کې د مغرب ستوري)) په سریزه کې لیکل شوي.

د شرقي مستعمرو په چلوونکو غربي استعمارګرو کې ځینې داسې کسان هم وو چې د ختیځو ژبو د زده کړې تر څنګ یې د دغو هېوادونو د فرهنګ په باب هر اړخیزې څېړنې

هم وکړې، د شرقي ژبو آثار يې په خپلو ژبو ترجمه کړل او د شرق ډېر قيمتي او ناويات آثار يې خپلو هېوادو ته يووړل. اوس د شرقي ژبو ډېر آثار د غرب په کتابخانو کې خوندي دي.

د اروپايي ښکېلاکګرو ځواکونو له پرمختګ سره سم افغانستان د شمال له خوا د روسي ځارانو او د جنوب له خوا د بريتانيا د هند د شرقي کمپنۍ د استعماري پراختيا غوښتونکو تر سترګو لاندې و. افغانستان د خپل ستراتيژيک موقعيت له امله د شمال او جنوب د استعماري ځواکونو د هدفونو د ترسره کولو لپاره ډېر مهم و. له بده مرغه دغو ښکېلاکګرو ځواکونو زموږ د هېواد له واحد تن څخه ځينې ټوټې بېلې کړې او اوږده کلونه يې دا هېواد د جګړو د لمبو خوراک کړ، خو ځينو نظامي او ملکي مامورينو يې زموږ د هېواد د ژبو او فرهنګ مطالعه هم وکړه. زموږ د ژبو قاموسونه او ګرامرونه يې هم وليکل. زموږ د لرغونو آثارو د منتخباتو ژباړې يې په اروپايي ژبو وکړې.

د اتلسمې ميلادي پېړۍ په وروستيو کې پښتو ژبې، ادب، تاريخ او کلتور ته د استعماري ځواکونو (ځاري روسيې او انګرېزانو دواړو) پاملرنه را اوښتې وه.

په روسيه کې د پښتو په اړه کارونه لومړی په جرمني ژبه شروع شول او بيا پکې انګرېزي ژبه هم داخله شوه. په ۱۷۹۱م. کال کې د ګولډن شتيت پښتو جرمني قاموس د هغه وخت د روسيې په پلازمېنه (پايتخت) ((سنټ پترزبورګ)) کې خپور شو.

دغه راز له دې وروسته هم په روسيه کې د پښتو او پښتنو په اړه څېړنې شوې دي، لکه:

ـ د کلا پروت هغه اثر چې په جرمني ژبه (د افغانانو ژبه) په نوم خپور شوی دی.

ـ د پروفيسر ډورن پښتو منتخبات او همدارنګه د پښتو ژبې د ګرامر او تاريخ په اړه د هغه څېړنې، په راوروسته کې د شوروي اتحاد په دوران کې هم په روسي ژبه په سينټ پترز بورګ او مسکو کې او هم د هغه وخت د شوروي اتحاد په نورو جمهوريتونو کې د پښتو ژبې، تاريخ او ادب په اړه ډېرې زياتې څېړنې شوې دي.

د ختيځې اروپا په ځينو هېوادونو کې هم د ختيځ پوهنې په ادارو کې پښتو ژبې او ادب خپل ځای پيدا کړ، لکه: د هغه وخت ختيځ جرمني، پولنډ، چک او نور... .

د افغانستان ختيځو او جنوبي خواوو ته د هندوستان په خاوره کې راټوکېدونکي ښکېلاک هم د اتلسمې پېړۍ په وروستيو کې پښتو ته پاملرنه وکړه. دوی د زړو ديانو د کتابونو له پښتو ژباړې څخه په دې لړ کې خپل کار پيل کړ. وروسته يې د پښتو ژبې او گرامر د کار ساحه هم ډېره پراخه وه او د ژبې د گرامر، ادب، لغاتو، تاريخ او جغرافيا پر موضوع گانو يې پوره کار وکړ. تر راورټي وروسته د لوېديځې اروپا په ختيځپوهنه کې د پښتو خوا ته پاملرنه واوښت او په راوروسته کې په لسگونو ختيځ پوهانو په جرمني، انگليسي، فرانسوي او ايټاليايي ژبو د پښتو ژبې، ادبياتو، تاريخ او فرهنگ په اړه مقالې، رسالې او کتابونه ليکلي دي او دا هلې ځلې تر اوسه پورې کله په شور او کله پښه نيولې روانې دي.

د دغو پښتو پوهانو کارونه په ډېرو برخو کې ارزښتمن دي او البته په ځينو برخو کې به نيمگړتياوې هم لري. د پښتو د فرهنگ او ژبې د پېژندنې او معرفۍ په اړه چې کوم کارونه د پښتنو له خوا شروع شوي دي، زياترو د همدغو ختيځپوهانو له آثارو گټه اخيستې ده. زموږ د ډېرو ادبي شخصيتونو او کتابونو په اړه يې معلومات د دغو ختيځپوهانو له اثارو اخيستي دي.

پوهاند ډاکټر حبيب الله تږي هم د ختيځپوهانو په اړه د خپل کتاب په سريزه کې په زړه پورې خبرې لري. هغه وايي:

څرنگه چې پښتانه د خيبر درې يا په اصطلاح د پخواني هند د دروازې او د دغې ستراتيژيکې ساحې د نورو لارو شاوخوا پراته دي، نو له دې امله يې د شرق او غرب ترمنځ په هغو ډغرو کې ډېر مهم موقعيت لرلی دی چې په لوېديځ کې (ستره لوبه) بلل شوې ده. دا ستره لوبه چې تخميناً دوه پېړۍ دمخه پيل شوه، تر اوسه هم په يوه يا بله بڼه دوام لري. غربي پوهانو د پښتو په باره کې مطالعات په حقيقت کې همدغه د ختيځ او لوېديځ ترمنځ د ډغرو يا سترې لوبې په لړ کې پيل کړل. داسې چې د لوبې لومړني لوبغاړي يعنې انگلستان او روسيه دواړه په خپلو ډغرو کې د پښتنو خاص اهميت ته متوجه شول او پښتني مطالعات په تېره بيا د پښتو ژبې زده کړه او څېړنه يې د خپلې سيالۍ ډېره مهمه برخه وگڼله.

په اروپاکې د پښتو ژبې زده کړه په حقیقت کې زیاتره یې د همدغه احساس پر بنسټ پیل شوه، خو باید وویل شي چې نه د ټولو غربیانو د پښتو ژبې د زده کړې او مطالعې لامل همدا احساس و او نه په پښتونخوا کې د اروپا د پوهانو څېړنې یوازې په پښتو ژبه پورې محدودې پاتې شوې، بلکې غربي پوهانو د بېلابېلو هدفونو پر بنسټ د پښتني ټولنې د بېلابېلو اړخونو په باره کې خپلې مطالعې پراخې کړې او په نتیجه کې دغو پوهانو د نولسمې پېړۍ له نیمایي څخه د شلمې پېړۍ تر لومړیو پورې په دې برخه کې ډېر زیات آثار تالیف او ترجمه کړل. د دغو آثارو یو شمېر یې دومره پاخه او معتبر دي چې تر اوسه یې بیا چا ساری ونه لیکه.

د نړۍ په گوټ گوټ کې زیات شمېر پښتو پوهان تېر شوي او په ځینو هېوادونو کې اوس هم په هلو ځلو اخته دي. د دوی شمېر دومره زیات دی چې د ټولو په هکله خبرې ډېر وخت غواړي، دلته یې یوازې ځینې مهمې څېرې په لنډه توگه درپېژنو.

بوریس اندرییویچ ډورن: په ۱۸۰۵م. کې په جرمني کې زېږېدلی او هلته یې لوړې زده کړې په ختیځپوهنه کې ترسره کړې دي. په ځوانۍ کې د روسیې د دولت په غوښتنه هغه هېواد ته لاړ او بیا نو د ژوند تر پای پورې هلته پاتې شو.

پروفیسور ډورن د ختیځو ژبو له قلمي پانگو سره زیاته مینه لرله او د لندن او اکسفورډ د کتابتونونو قلمي ذخایر یې ټول لیدلي وو. په روسیه کې د خارکوف او پترزبورگ په پوهنتونونو کې د ختیځو ژبو استاد او بیا د پترزبورگ د عمومي کتابتون مشر و. د نوموړي په برکت په روسیه کې د پښتو ژبې د تدریس او څېړنې لړۍ پیل شوه. ډورن په پترزبورگ کې د پښتو د قلمي نسخو په راټولولو کې ستره ونډه لرله.

د ډورن ((پښتو منتخبات)) د ډېر ارزښت وړ اثر دی. هغه له بېلابېلو قلمي نسخو څخه د پښتو یو شمېر کلاسیک منظوم او منثور متنونه راغونډ کړي، تدوین او چاپ کړي او بیا یې خپاره کړي دي.

**هنري جورج راورټي:** د ختيځ پوهانو او پښتو پوهانو په لړ کې انګرېز پښتو پوه جورج راورټي د پښتو ژبې او ادب په لړ کې ستر کارونه کړي دي. هغه په ۱۸۲۵م. کې په انګلستان کې زېږېدلی او په ځوانۍ کې يې په هندوستان کې نظامي کار پيل کړ. په دغه لړ کې يې د هغه استعداد له مخې چې لاره يې، د هندوستان يو شمېر ژبې زده کړې او کله چې پښتونخوا ته تبديل شو، خپله ټوله پام يې پښتو ژبې، قوم پېژندنې او د دې سيمې جغرافيې ته واړاوه. د راورټي په مهمو کارونو کې د هغه لوی پښتو ګرامر دی چې څو څو ځله يې چاپ کړی دی. پښتو انګليسي قاموس او د ((ګلشن روه)) په نوم کتابونه يې ډېر ارزښتمن دي. په ((ګلشن روه)) کې يې له سريزې وروسته د پښتو نثر او نظم غوره بېلګې راټولې کړې دي. د يو شمېر نورو کتابونو ليکوال هم دی.

**هنري والټر بيليو:** په ۱۸۳٤م.کال په هند کې زېږېدلی دی. د پښتو او پښتنو په اړه يې زيات آثار ليکلي دي. ((پښتو ګرامر)) او ((پښتو ډکشنري)) يې تر ټولو مشهور دي. نور ډېر آثار يې هم ليکلي دي.

**تور برن:** تور برن په بنو کې د برتانوي هند د حکومت د يو مامور په توګه کار کاوه. وروسته يې د پښتنو له ژوند، فولکلور، متلونو، کيسو او سندرو سره ځانګړې مينه پيدا شوه، هغه يې راټول او په ۱۸۷٦م. کال کې يې د ((بنو- زموږ افغاني سرحد)) په نوم چاپ او خپور کړ.

**جيمز ډارمسټټر:** دغه نوميالی ختيځپوه او پښتو پوه په ۱۸٤۹م. کال کې په فرانسه کې زېږېدلی دی. په پاريس کې يې په ادبياتو کې تر دکتورا پورې زده کړې وکړې. په ۱۸۸٦ ـ ۱۸۸۷م. کلونو کې په هند کې د ژبنيو پلټنو دنده وروسپارل شوه. په بمبئي، پېښور او هزاره کې يې څېړنې ترسره کړې.

د نوموړي مهم اثر ((د پښتونخوا د شعر هار و بهار)) نومېږي چې د انګرېزانو په وړاندې

د پښتنو د ولسي شاعرانو حماسي او تاريخي سندرې او چاربيتې يې پکې راټولې کړې دي.
د ډارمستېټر دغه اثر او د پښتو په اړه د هغه نور ارزښتمن آثار او څېړنې د زيات قدر وړ دي.
په ختيځپوهانو کې ډارمستېټر هغه څېړونکی دی، چې د مقايسوي څېړنو له مخې دې پايلې ته ورسېد چې پښتو د هندو آريايي ژبو په لوېديزه يا آرياني څانګه پورې اړه لري.

**پروفيسر مارګن ستيرن:** په ۱۸۹۲م. کال کې په ناروې کې زېږېدلی او د اروپا په بېلابېلو پوهنتونونو کې يې د هندو اروپايي ژبو د تدريس چارې پرمخ بيولې. د پښتو ژبې د څېړنې لپاره يې پښتونخوا او افغانستان ته سفرونه وکړل او د دې ژبې په اړه يې ډېرې په زړه پورې څېړنې خپرې کړې. نوموړی په اروپا کې د پښتو ژبې د معاصر او نوي تحقيق او تدريس له سترو استادانو څخه و، د پښتو ژبې او ګرامر په اړه خورا مهم آثار لري.

د يو شمېر نورو پښتو پوهانو به يوازې په نومونو بسنه وکړو:

جان ګورډن لاريمر، ډيوډ لاريمر، روس کيپل، هاول (څلور واړه د انګلستان)، پروفيسر اسلانوف (د پخواني شوروي اتحاد)، ډاکټر پنزل (اتريشی)، ډاکټر برژي بيچکا (د چک جمهوريت)، پروفيسر ليبيديف، پروفيسور دوريانکوف، مېرمن کالينينا، مېرمن ګراسيمووا، و. کوشيف، ګ. ف. ګيرس (ټول د پخواني شوروي اتحاد او اوسني روسيې) ډاکټر ميکنزی (د انګلستان)، منو هرسنګهـ بترا (د هندوستان) صولت شاه مېرګن (د تاجکستان)، عارف عثمانوف او عبدالحفيظ غني يف (د ازبکستان) جونز انيوالډسن او فين تيسين (د ډنمارک)، ژاک لوتس (د جرمني)، سبيستيان هاينه (د جرمني ځوان پښتو پوه) او يو زيات شمېر نور...

د متن لنډيز:
د نړۍ په ګوټ ګوټ او په تېره بيا په لوېديزه نړۍ کې يو شمېر داسې پوهان وو، يا اوس هم شته چې د پښتنو د تاريخ، کلتور، جغرافيې او د پښتو ژبې په اړه يې څېړنې

کړې دي. د بېلابېلو اړتیاوو او موخو له مخې دوی دغه کار ته مخه کړې ده. د دوی علمي کار موږ ته له څو اړخونو څخه زیات ارزښت لري:

۱ـ دوی د پښتنو ژوند، کلتور، ژبه او ادب نړیوالو ته د هغوی په ژبه معرفي کړي دي.

۲ـ د پښتو ځینې غنیمت قلمي آثار یې له ورکېدو ژغورلي او د نړۍ په معتبرو او محفوظو کتابتونونو کې یې خوندي کړي دي، کنه له موږ څخه به له بده مرغه لکه د نورو ډېرو غنیمت آثارو په څېر ضایع شوي او له منځه تللي وای.

۳ـ د پښتو ادب ډېره ولسي پانګه یې له مرګه ژغورلې ده.

٤ـ د پښتو او پښتنو په اړه یې ځینې داسې مهم آثار لیکلي دي چې سارى یې تر اوسه پورې نه دی لیدل شوی.




**روسي خاران:** خار د روسي واکمنانو له مشهورو څېرو څخه و، کورنۍ سلسله یې د خارانو په نامه یادېږي. (خار) د (تزار) په نامه هم یاد شوی، خو اصلي بڼه یې په روسي ژبه کې (خار) دی.

**د هند شرقي کمپنۍ:** په هندوستان کې د انګرېزانو د استعماري نفوذ او اغېز لومړنۍ بڼه په تجارتي توګه د هند شرقي کمپنۍ په نوم فعاله شوه، د ښکېلاک دغه کمپنۍ په پیل کې هندوستان ته د آبادۍ په نوم راننوتله.

**ستراتیژیکه ساحه:** دغه اصطلاح هغو سیمو ته کارول کېږي چې د جغرافیایي موقعیت له پلوه ډېره مهمه وي. د افغانستان او پښتونخوا موقعیت ته له جغرافیایي پلوه، ځکه د ستراتیژیک موقعیت سیمه ویل کېږي چې د هندوستان ـ منځنۍ آسیا او چین ترمنځ پرته ده. دغه سیمه ځکه تل د زبر ځواکونو له ګواښ سره مخامخ وه او دغه راز دې سیمې دوی ته ځانګړی ارزښت هم لاره.

**ستره لوبه:** د روسانو او انګرېزانو ترمنځ زموږ په سيمه کې د سيالۍ هڅې چې د رقابت اورنيو پړاوونو ته هم رسېدلي دي، د سترې لوبې په نوم يادېږي. د هغه وخت دوه زبر ځواکه (روس او انګليس) وو او دلته يې د خپلو ګټو د ساتلو او اغېز لپاره ستره لوبه پيل کړې وه. په معاصر دوران کې هم د نويو زبر ځواکونو لپاره دغه اصطلاح په نوي سياسي مفهوم کارول کېږي.




۱ـ زده‌کوونکي دې يو ځل په خپل خپل نوبت په لوړ غږ د دې متن يو يو پراګراف ولولي او نور دې غوږ ورته کېږدي.

۲ـ د متن له دقيقې لوستنې او اورېدنې وروسته دې اوس زده‌کوونکي دغو پوښتنو ته بشپړ ځوابونه ورکړي:

- د لويديزوالو له خوا ختيځ پوهنه او پښتو پوهنه په پيل کې د کومو هدفونو لپاره پيل شوه؟
- ((د پښتونخوا د شعر هار و بهار)) کتاب کوم پښتو پوه راټول کړی او لومړی يې په کوم ځای کې چاپ کړی دی؟
- د پښتو او پښتنو په اړه د ختيځ پوهانو کارونه موږ ته کوم کوم ارزښتونه لري؟

۳ـ د ټولګي ټول زده‌کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي. له متن څخه دې د پښتو پوهانو نومونه له ځانه سره وليکي. هره ډله دې له بلې ډلې څخه د يو يو پښتوپوه نوم اخلي او سياله ډله دې د دغه پښتو پوه د هېواد نوم ورته وايي. بيا دې سياله ډله له هغې بلې ډلې څخه همدا ډول پوښتنې کوي. ښوونکی به په پای کې بريالۍ يا زياته بريالۍ ډله اعلان کړي.

٤_ یو یو شاګرد د ټولګي تختې ته راجګېږي او له دغو لغتونو څخه دې یو یو لیکي:
ناویات، مستشرقین، قرینه، مقایسوي
زده کوونکي دې په خپله خوښه د دغو لغتونو معنا کوي او یو څه خبرې دې هم پرې کوي. بل زده‌کوونکی دې په خپل وار همدغه کار تکرار کړي. لغتونه د کتاب په پای کې معنا شوي، خو لازمه ده چې یو څه خبرې هم پرې وشي.



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې په خپلو کورونو کې یو ځل بیا دغه لوست په غور سره ولولي، په دې هکله یې که نور معلومات هم چېرته لوستي یا اورېدلي وي، ښه تر ښه، کنه د همدغه لوست عمومي مفهوم دې په شلو کرښو کې په خپل عبارت ولیکي.

خــدای دې نــه کـا چـا تــه وازې د آزار خـولـې
دغــه خـولـې دې پــه مـعـنـا کــې د ښـامـار خـولـې
د یـــوې خـــولـــې لـــه آزاره ووېـــرېـــږه
کــه پــه عـمـر دې دعــا کــانــدي هــزار خـولـې
چــې پـــرې راشـــي د مـظـلـوم د آه سـیـلـۍ
کـا لـه خـــاورو ایـــرو ډکـــې د مـــدار خـولـې
چـــې څـپـېـړې د مـظـلـوم د آزار وخـــوري
د دېـــوال تـــر ســـوړې پـوچـې کـا د کــار خـولـې
((حمید مومند))



# الف جانه خټک



ـ د څو تنو ښځینه شاعرانو نومونه پېژنئ؟

ـ د کومې ښځینه شاعرې شعر مو یاد دی؟

د پښتو ادب په تاریخي څېړنه کې د نارینه وو تر څنګ د ښځو ادبي هلې ځلې د هېرولو نه دي. په پښتو ادبیاتو کې هم په ولسي برخه کې د ښځو ونډه که له نارینه وو زیاته نه وي، په هېڅ ډول کمه نه ده. د دې په څنګ کې په لرغوني ادب او اوسني ادب کې هم د ښځو ونډه د پام وړ ده. تاسو د کلاسیکو ادبیاتو او اوسني ادب د ځینو ښځینه څېرو په اړه په بېلابېلو ټولګیو کې یو څه لوستي دي. په دې لوست کې د پښتو د یوې داسې معاصرې شاعرې په اړه غږېږو چې ډېره مشهوره نه ده، خو د شمېر له مخې لږ شعرونه یې ډېر په زړه پورې دي. شعرونو ته یې، څکه ځانګړې پاملرنه وکړئ چې زموږ د ټولنې اوسنیو بدمرغیو ته هم پکې اشاره شوې ده، د کلونو هغه پخوانی خبرې اوس هم زموږ د ټولنې لپاره ډېرې نوې دي او داسې ښکاري چې زموږ ټولنې د ذهنیت او فکر له پلوه له بده مرغه په نژدې اتیا کالو کې د ښځو په برخه کې هېڅ پرمختګ نه دی کړی.

د پښتو په اوسنيو ښځينه شاعرانو کې د مېرمن الف جانې خټک نوم د يادولو او ستايلو وړ دی. هغه په ۱۹۲۷م. کال د پښتونخوا د کوهاټ په احمدي بانډه کې زېږېدلې ده. تر اتم ټولګي پورې يې زده کړې وکړې او نورې منظمې زده کړې ترې نيمګړې پاتې شوې. وروسته يې په شخصي توګه زده کړو ته دوام ورکړ او تر ماسټرۍ پورې يې زده کړې وکړې. ډېره موده په خپل کلي کې د نجونو په يوه ښوونځي کې ښوونکې وه.

الف جانه خټک د وخت له سياسي او ملي موضوع ګانو سره هم پوره بلده ده او خپله يې هم ونډه پکې لرله. په پښتونخوا کې د هغه وخت له ستر ملي غورځنګ يا د پاچا خان له خدايي خدمتګار تحريک سره له نظري پلوه ملګرې وه.

مېرمن شاه جهان (پښتو ادب کې د مېرمنو برخه) په نوم يو کتاب ليکلی او په دغه کتاب کې يې د مېرمن الف جانې په اړه داسې ليکلي دي:

د الف جانې ټول کلام له پښتو او پښتنو سره له مينې او محبت څخه ډک دی. د پښتنو د زبون حالۍ او بې علمۍ ورته ژور احساس دی. هغه د پښتنو ټوله پسمانده ګي، له علم نه د دوی بې خبري ګڼي. د خپل پښتون قام ترقي يې د زړه له کومي اواز دی او دا يې لويه آرزو ده چې پښتون قام هم لکه د نورو ترقي يافته قومونو د ترقۍ هغه لوی معراج ته ورسي چې د نړۍ نور ترقي يافته قومونه ورته رسېدلي دي.

الف جانه خټک پښتون قام د غفلت له خوب څخه راويښوي او د پرمختګ او ترقۍ په بهير کې د برابرې برخې د اخيستلو لپاره خپل احساسات دا رنګ څرګندوي:

پښتونه پورته شه قامونو کې خپل قام پورته کړه
بيا په دنيا کې د پرېوتي پښتون نام پورته کړه
بيا په دنيا کې د قامونو انجمن جوړېږي
دې انجمن کې د ګمنامه پښتون نام پورته کړه
بې له نظامه ترقي د قوم ممکنه نه ده
قام منظم کړه او معيار بيا د خپل قام پورته کړه

پـربـوتـي قـام لـه تـرقـي بـويـه د بـرق پـه رفـتـار
د هـر سـحـر پـه مـقـابـل کـې خـپـل مـاښـام پـورتـه کـړه
د يـو څـو کـسـو تـرقـي تـه تـرقـي مـه گـڼـه
کـه تـرقـي غـواړې د قـام هـر خـاص و عـام پـورتـه کـړه
فـخـر افـغـان نـه مـې پـيـغـام د تـرقـۍ راوړی
پـه دواړو لاسـو دا پـيـغـام پـه احـتـرام پـورتـه کـړه
د جـهـالـت الـزام پـه تـا بـانـدې پـه ځـای لگـېـږي
د خـپـل تـعـلـيـم انـتـظـام وکـړه دا الـزام پـورتـه کـړه
د خـپـلـې ژبـې تـرقـي دې چـې هـم هـېـره نـه شي
د انـگـرېـزۍ پـه شـان مـعـيـار د خـپـل کـلام پـورتـه کـړه
نـر کـه دمـاغ وي سـتـا د قـام ښـځـې يـې زړه وگـڼه
کـه تـرقـي دې وي مـقـصـد د دې مـقـام پـورتـه کـړه

په دغه نظم کې چې اوس يې تاسو لولئ، الف جانې خټک د خپلې ټولنې يوې سترې نيمگړتيا ته اشاره کړې ده.

دا مـې مطـلـب نه دی چـې ظلم د خپل پلار وښـايم　　زړونـه وريـتـه د خپلو خويندو پـه انـگـار وښايم
زړه مـې دا غـواړي چې ړانده سـماج ته لار وښـايم　　د رواجـــي پـردې نـقـصـونـه تـار پـه تـار وښـايـم
خدايـه د ژبـې طاقـت د زړه طاقت راکـړې
کـه پـه غلطـه لاره ځـم تـه هدايـت راکـړې
صافـې اوبـه تـازه هـوا ده د هـر چـا د پـاره　　نه چې يـوازې پيدا کـړې خـدای دې ستا د پاره
دواړه څيزونـه دي ويـړيـا شـاه و گـدا د پـاره　　تـا پـابـنـدي پـرې لـگـولـې ده زمـا د پـاره

تــه د رحمــن پــه خزانــو دومــره بخیــل ولــې یــې؟
مــخ اړوونکی له قــرآن، تــورات، انجیــل ولې یې؟

لاړ شــه پــه جیــل کــې تــه د سېنســن    د قــاتــلانــو هــغــه طــوق هــغــه بــېــړۍ وګــوره
کــور کــې د خپلــې ښــځې حــال یــو ګــړۍ وګــوره    تنګ نـغـری، شلېدلی کـټ مـاتـه پـېـړۍ وګـوره
وایــه ســتا ښــځې هــم د قتــل ارتــکاب کــړی دی
یــا دې ځان خپل پــه مجرمانو کې حســاب کړی دی

داســې پــرده د زنانــه زنانــه پــن زیاتــوي    خوشـې تـعـداد د تـیـار خـورو پـه وطـن زیاتـوي
ســتا او زمــا پــه شــان بیمــار لوېــه زامــن زیاتــوي    ضعـف د بـدن زیـاتـوي وېـره د دښـمـن زیـاتـوي
نــن د بیــکارو خلکــو ځــای پــه مــخ د مزکې نشــته
دې بجلــې ګــر تــه ضــرورت د اور بلکــې نشــته

یــاد لــره ســتا یــو وزر مــات دی الوتلــی نــه شــې    پښه دې ده ګـوډه د ترقی پـه بـام ختلی نـه شې
قافلـې لاړې وریـسـې تـه رسـېدلی نـه شـې    شـرم اخیستی یې پـه ځـای پاتې کېدلی نـه شې
پــه ســمه لاره کــې ولاړ حیــران پښــېمان ولــې یې؟
ستا خپل عمل دی درته وړاندې، اوس ګرېان ولې یې؟

تــه د مذهــب پــه نوم پــه مــا څومــره ظلمونــه کوې    تـه یې مذهب بولې زمـا پـه خیال کفرونه کوې
خــدای او رســول بانــدې د غیــر اعتراضونــه کــوې    دیــن د اســـلام بـدنـامـوې ټـول رواجـونـه کـوې
راشــه چــې زه درتــه د خپــل دیــن حقیقت وښــایم
هســې د خولــې خبــرې نــه حدیــث آیــت وښــایم

خــلاص کــړه قــرآن او د قــرآن ســوره نــور وګــوره    تـه د عالم حکیم کـلام پـه حکمت پـور وګـوره
سرســري مــه ګــوره پــه عقــل پــه شــعور وګــوره    پس له هغې نه خپل رواج او خپل دستور وګوره
ســتا پــه عمــل کــې لــه آیت نــه تجــاوز ولــې دی؟
د خدای رســول پر ځای دا ســتا حکم نافذ ولې دی؟

د متن لنډیز:

زموږ په ادب کې د ښځو ونډه په پوره توګه د پام وړ ده. په ولسي ادب کې که د ښځو ونډه له نارینه وو زیاته نه وي، لږ ه هم نه ده. د دې په څنګ کې په لرغوني او اوسني ادب کې هم موږ یو شمېر نومیالی لیکوالې او شاعرانې لرو. په اوسني پښتو ادب کې الف جانه خټکه یوه تکړه شاعره ده. هغه په ۱۹۲۷م. کال د پښتونخوا په کوهاټ کې زېږېدلې او د خپل وخت د ملي- اصلاحي حرکت (خدایي خدمتګار) ملګرې وه. په پښتني ټولنه کې د ښځو د بې قدرۍ او د زده کړو او تعلیم له انساني او اسلامي حق څخه د هغوی د منع کولو په اړه یې دغه شعر د زیات ارزښت او پاملرنې وړ دی.

په دې شعر کې چې د (ترکیب بند) په بڼه دی، الف جانه خټکه د هر اورېدونکي او لوستونکي مخې ته د پښتني ټولنې د نجونو او ښځو د ژوند هنداره نیسي او ورته وایي چې اوس نو ته انصاف وکړه او د دغو ناروا وو، نادودو او ظلمونو ځواب ووایه. موږ ټولو ته د دې شعر د محتوا په اړه ژور فکر لازم دی.

## څرګندونه

وښایم: د ژبې د اصولو په پام کې ساتلو سره یې اصلي بڼه (وښیم) لیکل کېږي، خو دلته د الف جانې خټک په دې نظم کې د شعري اړتیاوو له مخې (وښایم) راغلی دی.

## فعالیتونه

۱ـ زده‌کوونکي دې د مېرمن الف جانې خټک د دغه نظم (ترکیب بند) یو یو بند په وار سره لولي او د بل کتار یو یو تن زده‌کوونکی دې په وار سره د دغه بند په اړه دوه دقیقې خبرې کوي.

۲ـ ټول زده‌کوونکي دې پر پنځو ډلو وویشل شي، هره ډله دې له دغو موضوعگانو یوه موضوع انتخاب کړي او په خپلو کې دې خبرې پرې وکړي. هره ډله دې خپل استازی وټاکي او بیا دې پر خپله موضوع ټولگیوالو ته معلومات وړاندې کړي.

- په ټولنه کې د ښځو ونډه
- په زده کړو کې د ښځو او نارینه وو برابره ونډه
- خدایي خدمتگار حرکت
- په پښتني ټولنه کې د ښځو په اړه ناوړه دودونه کوم کوم دي؟
- الف جانه ختټک څه ډول شاعره ده؟

۳ـ یو یو تن زده‌کوونکی دې د الف جانې خټک د نظم له دغو لاندې لغتونو څخه یو، یو په داسې جمله کې وکاروي چې زموږ په ټولنه کې د ښځو له ژوند سره اړه لري:

ترقي یافته، ظلم، رواج، پابندي، پنجره، هدیره، ونډه.



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د خپلو سترگو د لیدلو حالاتو یا په خپل کلي- کور کې د اورېدو له مخې پر نجونو او ښځو د ظلمونو او نادودو یوه یوه کیسه ډوله لیکنه وکړي.

ښه سړی د چا په بدو نظر نه کا
که څوک بد ورسره کاندي دی به ښه کا
په بارداره ونه تل وربېږي کاڼي
ورته گوره چې بارداره ونه څه کا
په کینه په حسد هېڅ د چا ونه شي
هر سړی چې حسد کاندي ځان اوبه کا
((خوشحال خان خټک))

# کیسه او ژوند



ـ کومې کومې کیسې مو لوستي دي؟

ـ آیا کومه ولسي یا فولکلوري کیسه مو زده ده؟

ـ له کیسو سره مو ولې مینه ده؟

خامخا به مو ځینې کیسې لوستي یا اورېدلې وي. ښایي په کور کې مو له نیا، نیکه یا مور و پلار څخه کیسې اورېدلې وي. د کلي له کومې بوډۍ ښځې یا بوډا څخه به مو هم کیسې اورېدلې وي. دغه راز تاسو په تېرو ټولګیو کې ځینې کیسې لوستي او د کیسو په اړه مو ځینې معلومات ترلاسه کړي دي.

په دې لوست کې هم د کیسو په اړه خبرې لرو. دا چې کیسې له ژوند سره څه اړه لري؟ یا دا چې کیسې څنګه له ژوند سره سمې راروانې او تر دې دمه رارسېدلې دي؟

د کیسې او داستان په اړه کله کله دا خبره کېږي چې کیسه ژوند دی او ژوند کیسه. د دې خبرې معنا دا ده چې کیسه د ژوند له پېښو سره تړلې ده او د ژوند د پېښو لړۍ په حقیقت کې د ژوند د کیسې جریان او تسلسل دی. د دې خبرې معنا دا نه ده چې د ژوند د پېښو عادي بیان او یا د ژوند د پېښو کټ مټ لیکل، دا نو کیسه او داستان دی. انساني ژوند د پېښو یو داسې پرله پسې تسلسل دی چې د کیسو لپاره ترې پېښې چاڼ او انتخابېږي.

د ژوند د عادي جریان او کیسې په اړه یو لیکوال وایي.

ژوند ښایي بې نظمه، بې ترتیبه او کله هم ښایي بې هدفه وي. پېښې په پاشلي ډول واقع کېږي. دا د ژوند په واقعیتونو پورې تړلې خبرې دي. که دغه شیان لکه هماغسې چې دي، تقلید شي، ښایي هېڅ ډول تړلنیز او هنري ارزښت ونه لري، ځکه خو نه شو ویلای چې کیسه د ژوند ټکی پر ټکی تقلید دی، بلکې کیسه باید د ژوند داسې تقلید وي چې د کیسه لیکونکي فکر او عاطفه ورسره ملګرې شوې وي او یو بل ډول بدلون یې پیدا کړی وي.

کیسه د ژوند یوه هنرمندانه طرحه ده. د کیسې تاریخ دومره زوړ دی، لکه د ژوند تاریخ. کیسه له انساني ژوند سره په یوه موازي کرښه کې روانه ده او همداسې به روانه وي. هلته چې انسان و، کیسه هم وه، هلته چې ژوند و، کیسه هم وه. ژوند په تشه (خلا) کې نه کېږي، انسان په خلا کې ژوند نه شي کولی او کیسې هم په خلا کې نه شي ایجادېدلی.

لرغوني انسانان چې د طبیعت له پېښو سره په مبارزه او مجادله کې وو، غوښتل یې چې پر دغو پېښو او ستونزو لاسبری پیدا کړي. زیاتې هیلې او غوښتنې یې لرلې. غوښتل یې چې والوځي، لرې او ناپېژندل شوې سیمې او ځمکې وګوري، د غرونو څوکو ته وختلی شي او د سیندونو تل ته ځانونه ورسوي، څرنګه چې د دغو کارونو له سرته رسولو څخه بې وسه وو، خیال ته یې پناه وړله. داسې افسانې یې جوړولې چې وکولی شي خپلې دغه ډول هیلې پکې تسکین کړي.

په لومړي سر کې افسانې سختې خیالي او له عجایبو ډکې وې. ښاپېریو او دیوانو ته یې پناه وړله، خو انسانانو ورو ورو په کیسو کې په خپل فکري او ذهني توان تکیه وکړه.

کیسه د افسانې، نکل، حکایت، داستان او په نورو نومونو هم یادېږي او اوس دغه نومونه هر یو د جلا مفاهیمو لرونکي دي. په کیسه، داستان او نکل کې که له یوې خوا د ژوند تصویر او انعکاس پروت دی، له بلې خوا د کیسو تاریخي سیر ته پاملرنه هم ډېره په زړه پورې ده. دا چې کیسو څنګه دوام کړی او څه بدلونونه پکې راغلي دي؟ یو لیکوال لیکي:

د نړۍ ډېر څېړونکي دا خبره کوي چې افسانه د معاشرې د وګړو د اجتماعي مزاج نقشه ده. په کوم ځای کې چې د معاشرې څرک لګېدلی دی، هلته د افسانې څرک هم لګېدلی دی. موږ د ډېرو معاشرو حالات لولو، ولې د معاشرو جوړښت له تاریخي دور څخه مخکې هم و او په دغو معاشرو کې هم د افسانو شتون حتمي و، ځکه خو موږ ویلی شو چې له تاریخ څخه په مخکې دوره کې هم افسانې له ډولونو څخه په یو ډول وې، په دغه دوره کې به هم انسانانو له ډولونو څخه په یو ډول د خپل خیال اظهار کاوه.

د نړۍ لرغوني ولسونه، تمدنونه او فرهنګونه د لرغونو کیسو جوړوونکي، ویونکي او بیا لیکونکي دي. سره له دې چې دا ډېره ستونزمنه خبره ده چې موږ وکولی شو، لومړنۍ افسانې او کیسې پیدا کړو، ځکه چې د زمان تېرېدلو د کیسو د تاریخ پر پاڼو هم ګردونه وراچولي دي. خیال بخاري په دې اړه وایي:

انساني ژوند ډېر زوړ دی. د دې په مقابله کې د لیک لوست چل بني آدم ډېر وروسته زده کړی دی. هسې خو کیسې له انساني ژوند سره سمې رارواني دي او په هر ملك او هر قام کې موجودې دي، ولې که یو څوك د کیسې لټون په ماضي کې کول غواړي، نو د یو څو زرو کلونو هغه خوا به بالکل تیاره ومومي او د تاریخ پاڼې به ورته بالکل سپینې ښکاره شي. هر کله چې کیسه د تاریخ رڼا ته راوتې ده، په دې کې له زړو نه زوړ یادداشت د مصر، هند او یونان دی.

د مصر کیسې له میلاده مخکې نژدې ۲۰۰۰ کال ته رسېږي. دا کیسې زیاتره د جادو او ټوټکو په اړه دي. د یونان په پخوانیو کیسو کې د حکیم اسیپ (لقمان حکیم) کیسې

ډېرې مشهورې او لرغونې دي. د هند حماسي او رزمي پخوانۍ کیسې هم د زیات شهرت لرونکې دي.

د کیسو په تاریخي بهیر کې د زمانې په تېرېدو سره د بڼو او محتوا (موضوع) له مخې بېلابېل بدلونونه راغلي دي. د نړۍ له ودې سره د خلکو په فکري وده کې هم بدلون راغلی. ادبیاتو او ادبي روایتونو هم لازم بدلون موندلی دی. له همدې کبله هغه کیسې او افسانې چې په ډېرو لرغونو زمانو کې ویل شوې او یا لیکل شوې دي، د نن له کیسو سره څرګند توپیرونه لري.

په پښتو ژبه کې کیسې او افسانې ډېرو لرغونو زمانو ته رسېږي. په پښتني ټولنه کې په کلیو، باندېو، کورونو، دېرو او حجرو کې له کیسو سره د عام ولس مینه دا څرګندوي چې زموږ په ټولنه کې له کیسو سره مینه ډېره پخوانۍ ده.

په دې اړه د تاریخي مطالعې په لړ کې کله کله د افسانې، کیسې او نکل یا داستان له بېلابېلو اصطلاحاتو سره مخامخ کېږو او کله کله د یوې پر ځای بله اصطلاح هم کارول کېږي او آن چې د څېړونکو ترمنځ هم پکې اختلاف لیدل کېږي. کله چې موږ د افسانې نوم اخلو، نو باید دې ټکي ته پام وکړو چې افسانې اوس یو خاص مفهوم پیدا کړی دی. په افسانه کې هر څه په خیالي پېښو او څېرو او شیانو پورې تړل شوي دي. مهال پکې چندانې اهمیت نه لري. له یو کال څخه تر زرو کالو پورې وخت پکې انتخابېږي. د افسانو د دوو کرکټرونو ترمنځ جنګ څو کاله هم دوام کوي. د افسانې د جنګ میدان د ټولې ځمکې مخ هم انتخابېدای شي، کولی شي د وینو رودونه وبهوي. خپل قهرمانان د نړۍ له یو سر څخه بل سر ته په یوه ګړۍ کې ورسوي.

افسانه یوازې د خیالونو او کله کله د خرافاتو پر اړخ څرخي، خو نکل بیا داسې نه دی. نکل ته پښتو ولسي کیسې یا پښتو ملي کیسې هم وایو. د افسانو او داستان دواړو ځانګړنې لري. له افسانې سره یې توپیر دا دی چې نکل تر ډېره ځایه پورې د چاپېریال او ټولنې له مسایلو سره اړخ لګوي او له داستان یا کیسې سره یې توپیر دا دی چې هغه د چاپېریال مسایل، قهرمانان او زمان یا مکان په یو څه مجرده بڼه راوړي.

د دې خبرې معنا دا ده چې نکل ولسي بڼه لري، موږ ورته ولسي کیسې هم وایو او مجردې مو څکه وګڼلې چې کله کله د زمان، مکان، قهرمان او کرکټر، ټولنې او چاپېریال ترمنځ منطقي اړیکې نه لیدل کېږي او یا کمې لیدل کېږي.

داستان او کیسې سره ورته مفاهیم دي. دلته ټولنه او یا کرکټرونه په هر اړخیزه توګه تشریح کېږي. داستان لیکونکي خپل اتلان له ټولنې څخه ټاکي، په ټولنه کې ژوند پرې کوي او د ټولنې تودې سړې پرې ګوري او هرې لوړې ژورې ته چې مخامخ کېږي، د یو عادي انسان په توګه ورسره لاس او پنجه نرموي، یا په ډېره لږه (او ممکنه) فوق العاده ګی ورسره چلند کوي.

کیسې د ټولنیز ژوند منعکسوونکې او څرګندوونکې هنداري دي او موږ کولی شو چې د وخت ډېر عمده او بنسټیز مسایل په کیسو کې ولټوو.

د متن لنډيز:

کیسه د ژوند له پېښو سره تړلې ده او د ژوند پېښې په حقیقت کې لکه کیسه داسې ده. د کیسې تاریخ دومره زوړ دی، لکه: د ژوند تاریخ. کیسه او داستان له انساني ژوند سره په موازي او برابره کرښه کې راروان دي، چېرته چې د ژوند څرک شته دی، کیسه هم شته. په پښتو ژبه کې هم کیسې او افسانې ډېرې لرغونې زمانې ته رسېږي. له کیسو سره د پښتنو په کلیو، باندو، جونګړو، دېرو او حجرو کې مینه، د ډېرې پخوانۍ لېوالتیا څرګندونه کوي. افسانې زیاتره په خیالي پېښو، خیالي څېرو او خیالي څېزونو پورې تړلې وي. نکل ته موږ پښتو ولسي کیسې یا ملي کیسې هم وایو. د خپلې ټولنې او چاپېریال پېښې را اخلي، خو کله کله یې رنګ افسانوي کېږي. په داستان یا کیسه کې ټولنه او کرکټرونه په هر اړخیزه توګه تشریح کېږي، اتلان له ټولنې څخه ټاکل کېږي. کیسې د ټولنیز ژوند منعکسوونکې هنداري دي.

**عاطفه:** په ادبیاتو کې او په تېره بیا په کیسه او شعر کې د ((عاطفه)) ((عطوفت)) ((عاطفي بیان)) ((عاطفي چلند)) او داسې نور اصطلاحات ډېر کارول کېږي. موږ کولی شو چې عاطفه په عمومي ډول داسې معنا کړو: مینه، محبت، احساس، مهرباني او نور... څرنګه چې دا په ارواپوهنې پورې اړونده اصطلاح ده، نو له اروايي (رواني) پلوه عاطفه داسې پېژندلای شو:

عاطفه هغه رواني اغېز یا غبرګون دی چې له بهرنیو شیزونو، چارو او پېښو سره د مخامخ کېدلو په وخت کې په ذهن کې رامنځته کېږي، لکه: محبت، شوق، کینه، قهر او نور...

**له تاریخ نه مخکې دوره:** دا هغه دوره ده چې لیک یا خط نه و ایجاد شوی. په تاریخي څېړنو کې د دغې دورې څېړل، ځکه ډېر اهمیت لري او ستونزمن کار دی چې لیکلي اسناد يې نشته. د لرغونپوهنې په څېړنو کې د لرغونو دورو د نښو نښانو له مخې د بېلابېلو دورو او ځانګړتیاوو څرګندونه کېږي.

**خیال بخاري:** اروانښاد خیال بخاري د پښتو تکړه لیکوال و. د پېښور د پښتو اکیډیمی له نومیالیو څېړونکو څخه و. د ژبنیو او ګرامري څېړنو په برخه کې يې ډېر کار کړی او یو شمېر لرغونو او ادبي متونو په اړه يې هم څېړنې کړې دي.



## فعالیتونه

۱ــ بېلابېل زده‌کوونکي دې له دې لوست څخه په ګټه د کیسې او ژوند د اړیکې په اړه لنډې لنډې خبرې وکړي.

۲ــ د دغو موضوعاتو په اړه دې درې تنه زده‌کوونکي خبرې وکړي.

- له کیسو سره د خلکو مینه څکه زیاته ده چې ... .
- د پخوانیو او اوسنیو کیسو یو څو توپیرونه ... .
- په کیسو کې (عاطفي بیان) څه ډول دی؟

۳ــ زده‌کوونکي دې دغو پوښتنو ته ځواب ووایي:

الف: آیا کیسه د ژوند تقلید دی؟ که نه، نو له ژوند سره یې څه اړیکه ده؟

ب: د کومو هېوادونو یا تمدنونو لرغونې کیسې ډېرې مشهورې دي؟

ج: د افسانې، نکل او داستان یا کیسې توپیرونه کوم کوم دي؟

٤ــ په ټولګي کې دې دوه تنه زده‌کوونکي په خپله خوښه یوه یوه کیسه او یا حکایت په لنډیز سره واوروي چې یا یې چېرته لوستی یا یې له چا اورېدلې وي. یو یو تن زده‌کوونکی دې د دغې کیسې د ټولنیز ارزښت یا له ژوند سره د دې کیسې په اړه لنډې څرګندونې وکړي.



## کورنۍ دنده

هر زده‌کوونکی دې یوه یوه کیسه له خپله ځانه په کتابچه کې ولیکي. کیسه یې باید دغه شرایط ولري:

۱ــ کیسه باید له خپل ځانه ولیکي.

۲ــ د یوې داسې پېښې په اړه یا د یو داسې چا په اړه دې یې ولیکي چې د هغه په اړه ښه معلومات ولري.

۳ـ پېښنه يا هغه شخص يا کرکټر د کيسه ليکنې ارزښت ولري.

٤ـ کېدای شي دا پېښنه يې خپله ليدلې وي، که هېڅ داسې پېښنه يې نه وه ليدلې، بيا دې يې د داسې يو چا يا پېښې په اړه وليکي چې له چا يې اورېدلي وي، خو تاسو ته پکې پوره معلومات ترلاسه شوي وي.

يادونه:

کيسې به په پرله پسې توگه په ټولگي کې اورول کېږي او درې غوره کيسې به ترې انتخابېږي او دغه درې کيسې به د ښو کيسو په توگه د ټولو له خوا ستايل کېږي او بيا به د لېسې په ديوالي جريده او يا چاپي جريده او مجله کې چاپېږي.

تــور تـــه خــمــه ســپــيــن تــه خــمــه زيـــړ تـــه خــمــه
د جـــانـــان د کـــور پـــوښـــتـــنـــه تـــرې کـــومـــه
هـــر يـــو مـــا تـــه در د خـــپـــلـــې لـــيـــلـــې ښـــايـــي
اوس پـــه مـــنـــځـــه لار کـــې نـــاســـت کـــرم ريـــبـــمـــه



دا د ژونـــد کـــړې وړې او اوږدې لارې
چـــې پـــه هـــر قـــدم کـــې ډېـــرې خـــطـــرې دي
خـــو چـــې مـــخـــامـــخ د پـــت، مـــيـــنـــې مـــنـــزل وي
نـــو لـــه ټـــولـــو شـــېـــريـــنـــيـــو نـــه خـــوږې دي
اجمل ختټک



# شفیق
# او پښتو لنډه کیسه



ـ د پښتو د کومو لیکوالو لنډې کیسې مو لوستي دي؟

ـ په پښتو ژبه مو د لنډو کیسو کوم کوم کتابونه لوستي دي او یا یې نومونه پېژنئ؟

د پښتو د اوسني یا معاصر ادب په عمومي مطالعه کې تاسو د محمد موسی شفیق نوم اورېدلی دی. شفیق د پښتو کیسه لیکنې په لړ کې هم د یادونې کار کړی دی او د دې په څنګ کې چې شاعري یې کړې ده، په زړه پورې لنډې کیسې یې هم لیکلې دي.

د تېرو ټولګیو په لوستونو کې مو د پښتو لنډې کیسې پر تاریخچه هم عمومي معلومات ترلاسه کړي دي. راځئ چې په دې لوست کې د خپل دغه پیاوړي لیکوال (محمد موسٰی شفیق) د لنډو کیسو په اړه بشپړ معلومات ترلاسه کړو.

د دېرشمو هجري شمسي کلونو په بهیر کې (د شلمې پېړۍ په درېمه لسیزه کې) په هېواد کې څو داسې لیکوال رامیدان ته شول چې د پښتو لنډې کیسې په برخه کې یې یو څه اساسي کارونه وکړل. په دوی کې یو شمېر یې د نړۍ له داستاني ادب سره زیات او یو څه یې تر یو حده اشنا وو. دوی د پښتو کیسه لیکنې په برخه کې نوي ګامونه اوچت کړل.

محمد موسی شفیق په همدغه ډله لیکوالو کې شمېرل کېږي. سره له دې چې هغه هم یا زیاتې لنډې کیسې ونه لیکلې او یا یې موږ ته ټولې لنډې کیسې راونه رسېدلې، خو هغه څه چې ترې راپاتې شوي او نن زموږ په لاس کې دي، د خپل وخت د ډېرو ښو آثارو په توګه به تل خپل ارزښت وساتي.

د شفیق د لنډو کیسو یوه ټولګه د ((عبقریان)) په نوم په ۱۳۴۶ هـ. ش. کال په کابل کې خپره شوې ده. په دغه مجموعه کې په دري ژبه د هغه یوه لنډه کیسه د ((عبقریان)) تر سرلیک لاندې او دغه نورې څلور پښتو لنډې کیسې خپرې شوې دي: ((هفته کودک))، ((ډاکټر صاحب))، ((د تمې کاروان)) او ((برکت)) دغه ټولې کیسې هغه په ۱۳۳۸ او ۱۳۳۹ هـ. ش. کلونو کې لیکلې دي.

دا هغه وخت و چې زموږ لنډه کیسه د خپل یون په ډېرو لومړنیو پړاوونو کې وه. شفیق او د دغه وخت یو شمېر نورو لیکوالو د پښتو لنډې کیسې د بهیر یون ته نوې ولولې ورکړې. د شفیق دغه کیسې په داسې وخت کې لیکل شوي چې نوموړي په مصر او بیا وروسته په امریکا کې زده کړې ترسره کړې. د نړۍ بېلابېلې برخې یې ولیدې. له عربي او انګلیسي ادبیاتو سره اشنا شو او دغه اشنایۍ به هم د هغه د آثارو په پیاوړتیا کې لاس لرلی وي.

د محمد موسی شفیق د دغو لنډو کیسو د ځانګړتیاوو په اړه باید دغه ټکي په نظر کې ولرو:

۱_ د هغه وخت د ډېرو پښتو لیکوالو په تناسب او پرتله، د شفیق د کیسو نثر په زړه پورې او داستاني دی. د هغه وخت د یو شمېر کیسو د (په اصطلاح) ډېر رسمي او مطبوعاتي نثر اغېز پرې نشته چې د ژباړل شوي نثر ګومان دې پرې وشي.

۲ـ طنز، د شفیق د لنډو کیسو یوه مهمه برخه ده. د طنز مالګه د هغه په ټولو کیسو کې شته. د طنز او خندا دغه مالګه د هغه کیسو ته لا په زړه پورې بڼه ورکړې ده.

د ((ډاکټر صاحب)) په نوم د هغه د کیسې ځینو برخو ته په دې اړه پاملرنه کوو:

((دی لا په همدې چورت کې و او د خپلې آینده وېرې اخیستی و چې ناڅاپه ورنه د هوسۍ ترور پوښتنه وکړه:

ـ ډاکټر صاحب! ستا معاینه خانه چېرته ده؟

او چې ډاکټر صاحب ځان ځواب ته جوړاوه، هغې ترې بې واره پوښتنې وکړې:

ـ د ورځې څو مریضان درته راځي؟ یعنې د ورځې ګټه دې څومره ده؟ په کومه شفاخانه کې نوکر یې؟

ډاکټر صاحب په ډېر مشکل وکولی شول چې د هوسۍ د ترور له یوې وقفې نه استفاده وکړي او ووایي:

ـ صاحب وبښئ زه د طب ډاکټر نه یم.

ـ ماته خو ټولو ویلي وو چې ته ډاکټر یې!

ـ ډاکټر یم، مګر د طب نه.

ـ یعنې اشنایان دې درته هسې په ټوکو ډاکټر وایي؟

ـ نه زه د ډاکټرۍ شهادت نامه لرم.

ـ نو څنګه ډاکټر یې چې معاینه خانه دې نشته او د ډاکټرۍ شهادتنامه لرې؟

ـ زه د ادبیاتو ډاکټر یم.

ـ یعنې چې څوك په ادبیاتو باندې پوهېږي او زموږ د دې سندرغاړي غوندې ښه ښه شعرونه یې یاد وي، یوازې د هغوی ډاکټري کوې او د بل چا نه؟

ـ نه صاحب، زه په ادبیاتو کې د ډاکټرۍ شهادت نامه لرم.

دلته هوسۍ مداخله وکړه او خپلې ترور ته یې د ادبیاتو د ډاکټرۍ د امکان په اړه توضیحات ورکړل او ورته یې وویل: په نوره دنیا کې د نورو شیانو ډاکټران هم شته.

د هوسی ترور هماغسې په تعجب کې وه، غټه جټکه یې خوړلې وه، مګر له ډاکټر نه یې بیا هم پوښتنه وکړه:

ـ ښه څو کاله سبق دې ویلی دی؟

ـ تقریباً شل کاله.

ـ څو کاله په یورپ کې وې؟

ـ اته کاله.

ـ اوس دلته څه منصب لرې؟

ـ استاد یم.

ـ استاد یعنې معلم یې؟

ـ هو!

د هوسی ترور په یو داسې عصباني حرکت له حلقې نه پاڅېده چې پټول یې ګران کار و...))

دا کیسه په همدې توګه دوام لري او د هغه وخت په ښاري ټولنه کې د ډېرو مصنوعي ارزښتونو او ناوړه کړو وړو انځورګري پکې د خندا او ټوکو په بڼه شوې ده. په حقیقت کې د ښاري ټولنې کمزورۍ او نیمګړتیاوې په ژوره توګه خو د طنز او ټوکو ټکالو له مالګې سره یوځای او په زړه پورې کوي.

۳ـ په دغو لنډو کیسو کې د هغه وخت د افغاني ټولنې د ژوند د ځینو حالاتو دقیقه څېړنه شوې ده. پر ډېرو اړخونو یې انتقاد شوی دی او دغه برخې د وعظ او نصیحت یا وچ اجتماعي انتقاد په توګه نه دي راغلي، د داستاني بیاني اړخونو ته هم تر ډېره حده پاملرنه شوې ده. د ((ډاکټر صاحب)) په کیسه کې یې د یو شمېر افغاني روښانفکرانو او تعلیم یافته وو (لوستو کسانو) پر ذهن د پردیتوب زیاته غلبه او اغېز ډېر ښه تصویر کړی دی:

((وطن ته د ډاکټر صاحب د بېرته راتلو نه اوس زیات و کم درې میاشتې تېرې شوې دي. چې په یورپ کې و نو د خپلو وروستیو پنځو کلونو په استوګنه کې ورته دا ضرورت ډېر زیات محسوس شوی و چې باید د خپل هېواد له ثقافت څخه پوره خبر وي. ده هلته ولیدل

چې په خلکو دې خبرې چندان تاثیر نه کاوه چې ده به ورته د فرانسې د لوی انقلاب په باره کې څه ویلی شول، یا به یې ورته د یورپ د فلاسفه وو نومونه صحیح تلفظ کولی شول او د هغوی په اړه به یې ورته صحیح معلومات ورکولی شول. دا خبرې هغوی ته له ده څخه ښې یادې وې. هغوی غوښتل چې د ده د وطن د تاریخ، جغرافیې، حقوقو، د فکر طرز او د ژوندانه د فلسفې په اړه، د خپلو معلوماتو خزانه زیاته کړي. هغوی د لامارتین له قصیدو څخه پوره خبر وو، مگر د جامي او خوشحال خان په اړه یې دومره څه نه وو اورېدلي چې تنده یې پرې ماته شي.

هلته ډاکټر صاحب (د هغه وخت شاگرد) په دې پښېمانه شو چې ولې یې د پښتو او دینیاتو معلم صاحبانو ته هغومره غوږ نه و ایښی چې د غرب د فلسفې ښوونکي مسټر او پروفیسور ته یې ایښود. د ډاکټر صاحب ښه په یاد دي، یوه ورځ یې له خپلو همزولو او ملگرو سره په پوهنځي کې خبرې کولې او خبره په وارداتو او صادراتو راغله. ده د انگلستان صادرات او واردات چُست وښودل، مگر د خپل وطن د صادراتو په شمارلو کې مانده او یخ راغی او چې بحث په ښارونو شو، نو د یورپ مشهور بندرونه او ښارونه یې په یوه سا حساب کړل، مگر د خپل ملك ورته فقط یو څو مشهور مشهور معلوم وو او نور یې څه ونشو ویلی. د دې نیمگړتیاوو د پوره کولو لپاره ډاکتر صاحب د یورپ په کتابخانو کې د خپل وطن په باب مطالعه وکړه او گویا د لاس غوټه یې په خوله ایله کوله...)

دا زموږ د یو شمېر روښانفکرو او تعلیم کړو ځوانانو د ژوند او فکر هغه موضوع ده چې ښایي په هغه وخت کې به ورته له شفیق پرته ډېر لږ کسان متوجه وو.

٤ـ کوم بل ټکی چې د شفیق په کیسو کې خپل ځان ښکاره کوي، هغه د کیسو توصیفي اړخ دی. هغه د خپلو کیسو څېرې (کرکټرونه)، پېښې، فضا او چاپېریال په ډېره ښه توگه توصیفوي. د توصیف له پلوه دغه کیسې خاص ارزښت لري.

د یوې نمونې لپاره ((د تمې کاروان)) په نوم د کیسې یوې برخې ته پام را اړوو:

((د یوې وړې کوټې نمر خاته کونج کې یو اوږد او پلن مېز پروت دی چې تقریباً د کوټې

دریمه برخه یې نیولې ده. نمر پرېواته او قطبي خواوو ته یې د دیواله پورې یو څو داسې سرې چوکۍ پرتې دي چې د څرمنې پوښ او د نرو لرګو بازوګان لري. د چوکۍ د ناستې ځای بوټې راوتلې او د اوسپنې د سیخونو نښې د څرمنو لاندې اوچته ښکاره کېږي.

د مېز پر سر باندې د بانجاني ورېو یوه شډله ټوټه غوړېدلې او د هغې د پاسه یو دیوات، یو قلم، یو جاذب، یو ټېلفون او یوه جنتري پرته ده. د میز شاته په یوه پراخه بازوداره چوکۍ باندې یو زوړ سړی ناست دی چې یوه عمودي شان خندا یې په ببرو شونډو باندې لکه د کاڼي د کربښې ښکل ده. د سړي پر سر توره پګړۍ ده چې د یوې تورې بخملي خولۍ نه ښویه تاوه شوې اود تندي د منځ په برابر یې د ګلاب د یو دوه ورځني غوړېدلي ګل هومره شمله پریښې ده. د زاړه سړي په غاړه باندې یو سپین کمیس دی چې خیرنې ژۍ یې د ګونجې ګونجې ورمېږ په غاړه له ورایه ښکاري... .))

داسې انځوریز نثر د اروابناد محمد موسی شفیق د لنډو کیسو نثر ته ځانګړې ښکلا ورکوي.

۵ـ د شفیق د کیسو بله ځانګړنه دا ده چې د کیسو د اتلانو او کرکټرونو د رواني حالاتو څرګندولو ته یې هم ښه پاملرنه کړې ده. دې خبرې او پاملرنې د هغه کیسې هم ژورې کړې دي او هم یې د لوستلو په وخت کې لوستونکي د کرکټر او څېرو له دننه حالاتو (رواني حالاتو) سره دلچسپي پیدا کوي.

د شفیق کیسې او د هغه د کیسو موضوعات زموږ د لنډې کیسې د تاریخي بهیر یوه ډېره په زړه پورې برخه ده. شفیق د پښتو لنډې کیسې له مخکښو لیکوالو څخه دی. هغه نه یوازې داسې لیکوال دی چې زموږ د کیسه لیکنې د تاریخ په لومړنیو کسانو کې راځي، بلکې یو داسې لیکونکی دی چې پښتو کیسه یې پر خپل خواږه نثر او پاخه قلم ځلولې او ښکلې کړې هم ده.

د متن لنډيز:

محمد موسی شفيق د پښتو لنډې کيسې يوه مخکښه څېره ده. د (عبقريان) په نوم د لنډو کيسو يوه ټولګه يې خپره شوې ده. په دغه داستاني ټولګه کې راغلې کيسې د کيسه ليکنې د هنري معيارونو له مخې په تول پوره کيسې دي. د متن او محتوا (موضوع) له پلوه هم دغه کيسې د وخت مهم موضوعات په خپله داستاني څولۍ کې رانغاړي.

د موسی شفيق د لنډو کيسو په ځانګړتياوو کې دغو ځانګړنو ته تم کېدای شو:

۱ـ په زړه پورې داستاني نثر. ۲ـ د طنز او خندا په بڼه د ژورو موضوع ګانو ځايول. ۳ـ د افغاني ټولنې د هغه وخت د ژوند د حالاتو انځورول. ٤ـ کيسې يې دقيق داستاني تصويرونه جوړوي. ٥ـ د کيسو د اتلانو او کرکټرونو د رواني حالاتو څرګندونه.



څرګندونې

**محمد موسٰی شفيق:** د افغانستان نوميالی عالم، ليکوال، سياستوال، سياستپوه او شاعر و. د ننګرهار د کامې اصلي اوسېدونکی و، خو دی خپله په ۱۳۰۸ هـ. ش. کال په کابل کې زېږېدلی دی. له لومړنيو او ثانوي زده کړو وروسته يې په شرعياتو، حقوقو او سياسي علومو کې په مصر او امريکا کې د ماسټرۍ تر درجې لوړې زده کړې وکړې. په بېلابېلو لوړو څوکيو يې کار وکړ او د معين، سفير، وزير او صدر اعظم دندې يې ترسره کړې. د ۱۳۵۷ هـ.ش. کال د ثور په کودتا کې شهيد کړای شو.

دغه آثار يې چاپ شوي دي:

۱ـ پيغام (د شعرونو ټولګه).

۲ـ عبقريان (د لنډو کيسو ټولګه).

۳ـ د ننګرهار شاعران.

**جامي:** په افغانستان کې د دري ژبې د کلاسیکو ادبیاتو نومیالی څېره ده. بشپړ نوم یې نورالدین عبدالرحمن جامي و. په هرات کې زېږېدلی او د ژوند دوران یې له (۸۱۷ څخه تر ۸۹۸ هـ. ق.) پورې دی. په آثارو کې یې د شعرونو پر دیوان سربېره بهارستان زیات شهرت لري.

**رواني حالات:** په کیسه لیکنه کې د کرکټر د رواني اړخ راسپړنه ده. په یو خاص موقعیت او چاپېریال کې د یو کرکټر د ځانګړي رواني او روحیاتي حالت څرګندونه په ادبي ـ داستاني آثارو کې خاص ارزښت لري.




۱ـ هر زده‌کوونکی دې د دې لوست یو یو پراګراف په لوړ غږ ولولي.

۲ـ زده‌کوونکي دې دغو پوښتنو ته ځواب ووایي:

- په پښتو لنډه کیسه کې محمد موسی شفیق د کوم دریځ او مقام لرونکی دی؟
- په عبقریان نومي کتاب کې د شفیق څومره کیسې راغلې دي؟
- له محمد موسی شفیق پرته مو د کومو لیکوالو لنډې کیسې لوستي دي؟ د لیکوال نوم او د کیسو نومونه یې واخلئ.

۳ـ یو یو زده‌کوونکی دې د شفیق د لنډو کیسو یوه یوه ځانګړنه تشریح کړي، پنځه تنه زده‌کوونکي به پنځه ځانګړنې ووایي، که کومه برخه ترې پاتې شوې وه، بل زده‌کوونکی به نوبت اخلي او پاتې برخه به یې ووایي.

٤_ محمد موسی شفیق د دې په څنګ کې چې نومیالی شاعر او لیکوال و، دغه لوړې دندې یې هم ترسره کړې: (سم ځواب په نښه کړئ):

الف: د افغانستان سفیر، د بهرنیو چارو وزیر او بیا صدر اعظم و.

ب: د بهرنیو چارو وزیر، د عدلیې وزیر، د پوهنې وزیر او صدر اعظم و.

ج: صدر اعظم، سفیر او بیا د مالیې وزیر و.

٥_ موسی شفیق د دغو کتابونو لیکوال دی: (یو ځواب سم دی، هغه په نښه کړئ):

الف: منتخب نثرونه، عبقریان، د ننګرهار شاعران.

ب: پیغام، عبقریان، د ننګرهار شاعران.

ج: راز، ادبي بحثونه، عبقریان.

د: د ننګرهار شاعران، عبقریان، د زړه خواله، شرنګ.

٦_ ګرامري برخه:

جمله څه ته وایي؟ لکه چې تاسو لوستي دي، جمله مجموعې او ټولګې ته وایي او د الفاظو او کلمو داسې یو ترکیب دی چې یو بشپړ مفهوم څرګندوي. جمله دوه برخې لري: مبتدا او خبر.

الف: په دې جملو کې مبتدا او خبر په نښه کړئ او جمله وشنئ:

- د موسی شفیق د کیسو په هکله باید دغه ټکي په پام کې ولرو.
- طنز د شفیق د لنډو کیسو یوه مهمه برخه ده.
- د یوې وړې کوټې نمر خاته کونج کې یو اوږد او پلن مېز پروت دی.

ب: په دې جملو کې ساده او مرکبې جملې سره بېلې کړئ:

- د زاړه سړي په غاړه باندې یو سپین کمیس دی چې خیرنې ژۍ یې د ګونجې ګونجې ورمېږ په غاړه له ورایه ښکاري.

- شفیق د پښتو کیسې له مخکښو لیکوالو څخه دی.
- د چوکۍ د ناستې ځای بوټ راوتلی او د اوسپنې د سیخونو نښې تر ځرمنو لاندې اوچته ښکاري.



## کورنۍ دنده

دغه ټول لوست یو ځل بیا ولولئ او د محمد موسی شفیق او د هغه د کیسو په هکله یوه مقاله ولیکئ چې له یوه مخه کمه نه وي.

د موسی شفیق دوه څلوریزې:

پـاکـې کـړئ لارې د خـپـل قـوم خـادمـانـو لـره
د وفـا لاس ورکـړئ د صـدق خـاونـدانـو لـره
د نـوي عـصـر نیـرنـګـونـو بـل افـسـون راوړی
سـتـرګـې پـه بـریـد پـرانـیـسـتـې ښـایـي افـغـانـانـو لـره



کـه دا یـو چـې پـه هـمـدې شـانـې اوسـېـږو
نـو پـه مـړو او مـعـدومـو بـه شـمـېـرېږو
راځـئ هـلـئ چـې لاسـونـه سـره ورکـړو
ګـونـدې دا سـیـلاب چـې راغـی لاهـو کـېږو



# د رنځو اوبو ونه

ـ تاسو تر اوسه څومره لنډې کیسې لوستې دي؟

ـ د پښتو د لنډو کیسو کوم کوم لیکوال او د کیسو کومې کومې ټولګې پېژنئ؟

ـ د لنډو کیسو کوم بهرنی لیکوال هم پېژنئ؟

په دې لوست کې تاسو ته داسې یوه لیکنه وړاندې کوو چې د اوبو د ارمان او په حقیقت کې د ژوند د ارمانونو یوه هنداره ده. دغه کیسه د هندوستان نامتو کیسه لیکونکي کرشن چندر لیکلې او قلندر مومند لنډه او پښتو کړې ده. لا نوره لنډه بڼه یې اوس ولولئ.

زموږ له کلي نه دواړه طرف ته سره وچ غرونه دي. د نمر خاته طرف غرونه خو بالکل سور اړ دي او پکې د مالګې درنګ دی. لویدیز طرف ته د غرونو پرمخ د کیکر او پلوشې ونې دي. د دې غرونو کاڼي تک تور دي، خو د دې تورو کاڼو ترمنځه د خوږو اوبو دوه ښکلې چینې دي او د دې دواړو غرونو ترمنځه زموږ کلی دی.

زموږ د کلي اوبه ډېرې کمې دي. زه چې په ښه بد پوه شوی یم، نو اسمان مې تل له ګرمۍ نه لوغړن لیدلی دی. زموږ د کلي د کورونو او خواوشا د ځمکې رنګ بالکل خړ دی. په دې ځمکه کې چې کومه باجره کېږي، د هغې رنګ هم خړ نه چې لا تور بخن دی. همدغه شان رنګ زموږ د کلي د مزدورانو، دهقانانو او د هغوی د جامو دی. له وړوکتوب نه زما یادداشت هڅو له اوبو نه شروع کېږي. د اوبو درد، د اوبو موسکا، د اوبو موندل، د اوبو ورکېدل، غرض دا چې زما سینه د اوبو د فراق له تمهید او د وصال له تاثیر نه ډکه ده.

زما ښه یادېږي چې زه وړوکی وم، نو ادې سره به له کلي نه ښکته خوړ ته کوزېدم. ادې به مې چې نمري وویڼځل، نو ما به د وچولو لپاره د خوړ پر غاړه غوړول. په خوړ کې لږې لږې اوبه وې، مړې مړې اوبه یې وې، سپینې سپینې ورو ورو روانې وې، بس لکه زموږ د ګاونډې پاینده خان لور، بانو. د دواړو موسکا خوږه خوږه وه او د خوږو په قدر خو هم هغه پوهېږي چې د مالګې درنګ کې نوکري کوي.

زما یاد دي چې دا خوړ به د کال شپږ میاشتې وچ و، چې د چیتر میاشت به په تېرېدو شوه، نو خوړ به په وچېدو لاس پورې کړ او چې ویساک به وتو، نو بس بالکل وچ شوی به و او بیا به د ده په تل کې یا تش شنه شنه کاڼي پاتې شول یا نرمه نرمه خټه. چې سړی به پرې ګرځېدو نو داسې به معلومېده لکه چې د وربښمو په غالیچو قدم ږدي. یو څو ورځې پس به د خوړ دا خټه هم وچه شوه او په مخ به یې تش د درزونو او ګونځو یو جال شان پاتې شو. ما ته ښه یاد دي چې ما په وړومبي ځل د دې خوړ وچوبی لیدلی و، نو په هغه شپه مې له غمه سترګه نه وه پټه کړې. ادې مې راته ډېرې کیسې وویلې، خو د ادې په غږ کې ماته ټوله شپه د خوړ په کاڼو د اوبو ورو ورو ښوییدل، د کاڼو منځ کې تېرېدل او په ښنګ تېرېدل وړاندې

وړاندې کېدل، لکه چې کله کله به بانو له غوسې نه د کوټې د گوټ پير نه په تېزۍ تاوه شوه، اوس دا اوبه وچې وې. ما ته چې دا خبرې رایادې شوې نو ادې نه مې پوښتنه وکړه:

ـ ادې! دا زموږ خوړ چېرته لاړ؟

ـ ځمکه کې ننوتو بچی!

ـ ولې ځمکه کې ننوتو؟

ـ د لمر د وېرې.

ـ ادې دا خوړ له نمر نه ولې یرېږي؟ ها، لمر خو ډېر ښه وي کنه!

ـ لمر یو نه دی، ښه بچی! لمرونه دوه دي، یو د ژمي لمر وي، بل د اوړي لمر. د ژمي لمر ډېر ښه او مهربانه وي او د اوړي لمر ډېر تېز او غوسه ناك وي، بچی. دا دواړه وار په وار زموږ کلي ته راځي. د ژمي له لمر نه زموږ خوړ ډېر خوشحاله وي، خو چې د اوړي ظالم لمر راشي، نو زموږ له خوړ نه ورو ورو جامې وکښل شروع کړي...

ما له ادې نه بله پوښتنه وکړه:

ـ ادې! دا د درنگ اوبه ولې تروې دي؟

ـ بچی دا لا بله کیسه ده.

ـ نو ووایه کنه ماته.

ـ نه بچی اوس ویده شه، ناوخته دی.

ـ نه نه، ماته ووایه کنه ژاړم.

ـ ښه ښه نیکه! وایم یې درته، خو چغې مه وهه.

ـ ښه

ـ ښه نو، دا درنگ دی کنه، دا په پخوا زمانه کې ښاپېرۍ وه او دغه د خوړو اوبو د چینو غر اول دیو و، دا ښاپېرۍ د دې دیو ښځه وه.

ـ نو بیا!

ـ نو بیا یو ځل د دیوانو جنگ شو او د دې ښځې خاوند هم پکې لاړ برتي شو او ښځه

ترې پاتې شوه، ده ورته ویلي وو چې تر څو زه نه یم راغلی، ته کور ناسته اوسه چېرته ځه راځه مه. دې ښځې ډېره موده خپل خاوند ته وکتل، خو خاوند یې رانغی. آخر یوه ورځ یو سپین دیو راغی او په دې مین شو. سپین دیو ورته ډېر درواغ مرواغ وویل چې ستا خاوند د دیوانو جنګ کې مړ شوی دی، نو هغې ورسره واده ومانه... بیا یوه ورځ هغه بوډا دیو راغی او چې دوی دواړه یې ولیدل نو له غوسې نه تک سور شو او دواړه یې مړه کړل. له هغې ورځې نه دغو دواړو غرونو ته ازار شوی دی او دا دواړه شنه کاڼي شوي دي. د هغه مخامخ غر اوبه ځکه خوږې وي چې هغه خپلې ښځې سره د رښتیانو مینه کوله او د دې بل غر دا اوبه ځکه تروې دي چې دا د هغې ښځې اوښکې دي چې هر وخت ژاړي او چې دا اوښکې وچې شي نو مالګه ترې جوړه شي.

کیسې ختمه شوه او زه ویده شوم، ما به په خوب کې هغه درنګ لیده چې پلار مې پکې مزدوري کوله. ما چې به کله کله پلار پسې هلته ډوډۍ وړله، نو پلار به مې د مالګین تالاو پر غاړه ناست اکثر دا ویل:

- یره! دلته ګوره څومره اوبه دي، خو بیا هم چرته اوبه نشته. زړه مې وایي چې چرته د خوږو اوبو تالاو ولټوم او پکې ښې غوټې ووهم چې دا ټوله مالګه مې له وجود نه لرې شي.

- اوبه... اوبه!!

خلکو اوبو پسې فریاد کاوه، خو اوبه نه وې او که وې هم نو یا به په پورې غاړه غر کې وې او یا په خوړ کې، خو دا خوړ هم شپږ میاشتې وچ و او بیا یوه ورځ خو بالکل ورک شو. دا زما د ماشومتوب خبره نه ده، زما د زلمیتوب واقعه ده. زموږ له کلي نه ډېر لرې هغه د زرګونو جریبو جاګیر خاوند اکبر علي زموږ د کلیوالو د خوښې خلاف د خوړ مخه بدله کړه، خپل پټي یې پرې خړوب کړل او زموږ او د خواوشا نور کلي یې تندې ته پرېښودل. د کلي خلک داسې اوتر شول لکه چې د چا مور و پلار مړه شوي وي. خوړ مړ شو او د هغه اوبه هم او موږ تږي شو. زما ښه په یاد دي چې د کلي خلکو سرکار کې په اکبر علي عریضې وکړې،

خو اکبر علي د هغه ځای تر ټولو لوی خان و. د مالګې ټیکه هم د هغه وه، نو نتیجه یې دا شوه چې د کلو خلکو خوږ خو رابیا نه کړه، خو د مالګې مزدوري یې بایلودې.

زه چې وړوکی وم نو په دغه مخامخ غره کې ایکي یوه چینه وه، خو لږ چې لوی شوم، دغلته یوه بله چینه هم وخوټېده. دا هم یوه په زړه پورې کیسه لري چې زما پلار د کلي د خلکو په ټینګار د چینې په لټون پسې ووت او چې کله یې بله چینه پیدا کړه نو د خلکو د ګډاګانو او سندرو یو شور جوړ شو.

زه هم په درنګ کې مزدور شوم، ماښام به ستړی ستومانه کور ته راغلم، وده به شوم او چې لمر به څرېکه وهله نو زه به په درنګ ورننوتی وم. له څو شپو راسې مې بانو نه وه لیدلې. یوه ورځ ماښام چې له کار نه راتلم، نو بانو مې په لاره ولیده. راته یې وویل:

ـ نن راشه ښه، کار مې دی درسره.

ـ زه ډېر ستړی یم نشم درتلی.

ـ نه نه ډېر ضروري کار مې دی درسره، راشه ښه.

او چې زه له پیشنمي نه مخکې چینې ته ورسېدم، نو بانو ناسته وه. هغه چوپ وه. زه هم چوپ وم، خو ما زړه ټینګ نه کړای شو.

ـ څه چل دی آخر، وایه کنه!

ـ زه درنه روانه یم!

ـ زما زړه درز پرېوتو. ما ویل که چینه وچه شوه، زما مری خپه شوې وه. ما په سخته وویل:

ـ چرته؟

ـ زما واده دی.

زه بې اختیاره شوم:

ـ ستا واده؟

ـ هو! ما د تره زوی ته ودوي. هغه له کالام نه راغلی دی. کوهاټ کې دی، صوبه دار

دی. هغې دا ټولې خبرې په یوه سا وکړې. زه غوسه شوم. هغه چوپ شوه. زه سوچونو په سر واخیستم. بانو بیا وویل:

ـ دا رښتیا دي چې وایي چې کوهاټ کې ډېرې تېرې اوبه دي. څو څو چینې دي پکې. بمبې دي پکې، چې کله دې زړه غواړي، تاو یې کړه او منگی ډک کړه، هه...

د هغې اواز له خوشحالۍ نه رپېده. زه ورته ورنژدې شوم. سترگو ته مې یې وکتل. د هغې په سترگو کې زما له مینې نه انکار نه و، دا وه چې پکې د اوبو اقرار و، ما داسې محسوسه کړه چې مینه یوازې صداقت، اخلاص او جذبه نه غواړي، لږې لږې اوبه هم غواړي. موږ دواړه چوپ وو. بانو منگی ډکولو، منگی یې ډک کړ او لاړه.

په کومه شپه چې د بانو واده و، نو ما خوب ولید چې زموږ خوږ بیا ډک ډک راغلی دی. د مالگې غر کې هم د خوږو اوبو چینې راخوټکېدلې دي او زموږ د کلي په منځ منځ کې یوه لویه ونه ده. دا ونه ټوله له رڼو اوبو نه جوړه ده. د ونې جرړې، ښاخونه، گلونه، مېوه او پاڼې ټولې د اوبو دي او له دې ښاخونو او پاڼو نه د اوبو ویالې روانې دي او په دې اوبو د کلي ځمکې خړوب شوې دي. خلک لگیا دي، کروندې کري، ښځې نمرې وینځي. ماشومان د گلونو امیلونه په لاس له ونې نه گرچاپېر گډېږي. بانو پاکې جامې اغوستي او ما ته وایي:

ـ اوس خو زموږ کلي کې د رڼو اوبو ونه راټوکېدلې ده کنه، اوس خو درنه زه هېچرته نه ځم. څومره ښه خوب و، خو چې ما مې پلار ته ووایه، نو هغه راته وویل:

ـ بل چا ته خو دې نه دی ویلی؟

ـ نه بابا دا خو خوب دی، تاسې ولې وېرېږئ!

ـ خوب دی، خو عجیبه خوب دی!

ـ نه بابا! ما خو چې خوب کې کومه ونه لیدلې وه، هغه خو سره نه وه، د هغې رنگ خو لکه د اوبو په شان و، خو دا ده چې پکې د مېوې پر ځای د گلابو سرې سرې کوزې غوندې ښکارېدې چې له هغې نه اوبه بهېدې.

ـ هر څه چې دي، خو دا ډېر خراب خوب دی، که پولیس واورېدو، نو تا به هم داسې

بوځي لکه چې هغه مزدوران يې بوتلي وو.

زما ښه ياد دي چې د پلار له وېرې ما څو ورځې دا خوب چا ته ونه وايه. ما چې د درنګ مزدورانو ته دا خبره وکړه، نو هغوی وخندل:

ــ دا خوب، خو دلته ډېرو کسانو ليدلی دی! دا خوب به رښتيا کېږي که خدای کول! ما خو ورومبی د دوی په خبرو يقين نه کولو خو اوس په دې پوه شوی يم چې زموږ دا خوب به خامخا رښتيا کېږي. يوه ورځ به د اوبو دا ونه زموږ په کلي کې زرغونېږي، تش جامونه به ډکېږي، خيرن نمري به وينځل کېږي، جل وهلي زړونه به تازه کېږي او ټولې شاړې ځمکې به ودانېږي.




۱ـ د کيسې يوه يوه برخه دې زده‌کوونکي يو ځل بيا په وار سره ولولي.

۲ـ په کيسه کې دغه پنځه لغتونه دې يو يو زده‌کوونکی معنا کړي؟ بيا دې نور زده‌کوونکي له کيسې څخه لس نور لغتونه انتخاب او له خپلو ټولګيوالو دې يې معنا وپوښتي.

لوغړن، باجره، جرړې، نمری، خوړ

۳ـ زده‌کوونکي دې په دريو برخو ووېشل شي، يوه برخه دې د دې کيسې نومونه له ځانه سره په کتابچو کې وليکي، دويمه ډله صفتونه او دريمه فعلونه. بيا دې ټول خپل لستونه ټولګيوالو ته ولولي.

٤ـ يو تن زده‌کوونکی دې په خپله خوښه او يو زده‌کوونکی دې د ښوونکي په خوښه د دې کيسې لنډ مطلب په خپلو الفاظو په ساده توګه خپلو ټولګيوالو ته څرګند کړي.

هر زده‌کوونکی دې د خپل کلي یا خپل ښار اړوند یوه په زړه پورې پېښه د لنډې کیسې په توګه ولیکي. د مخونو شمېر دې له دوو مخونو څخه نیولي تر څلورو مخونو پورې وي.

## شپېلۍ

د غـــــره پـــه ذهـــــن کـــې خــــوره شــــوه شـپـېلـۍ
پـــــه ســــــرو مــمـــاڼــو مـېـلـمـنـه شـــــوه شـپـېلـۍ
دا د کــــــبـــــږدۍ پـــــلــــو خــــــو واړوۍ لـــړ
تـــلــلـــي کــــوچـــۍ وه راســــتـــنـــه شـــــوه شـپـېلـۍ
وري زلـــمــــي شــــــول، اوښــــــې پـېـغـلـې شـولـې
لـــکـــه څـــېـــړۍ پـــه غـــرونـــو شـــنـــه شـــــوه شـپـېلـۍ
ســـــتــــــورو جــــــامــــــې د اتـــــــن واغــــوســـتــلـــې
د هـــســـــک د دښـــتـــو تــــرانـــه شـــــوه شـپـېلـۍ
((اسحاق ننګیال))

طـــــامــــــع هــــمــيــش وي پــــــه انــــــتـــــظــــار کــې
آب يـــــې د مـــخ ځـــــي پــــــه هـــــر ديـــــــار کـــې
ګـــنــــج چـــــې د صـــبـــر پـــيـــرمـــحـــمـــد بـــيـــامـــونـــد
تـــــوانـــګـــــر بـــــالـــــه شـــــي پــــــه دا ديــــــــار کــې
((پیرمحمد کاکړ))

# په پښتو کې ناول ليکنه




ـ تاسو تر اوسه کوم ناولونه لوستي دي؟

ـ کوم ناول مو ډېر خوښ شوی او ولې؟

ـ د پښتو ناولونو په اړه تر معلوماتو مخکې لازمه ده چې د ناول په اړه لنډې خبرې وکړو.

ناول انګلیسي کلمه ده او ویل کېږي چې له ایټالیایي (نو ویلا) څخه اخیستل شوې چې د (نوي یا کوچني) په معنا دی، خو په نورو اروپایي ژبو کې د ناول پر ځای د رومان اصطلاح کاروله کېږي. موږ دلته د (ناول) او (رومان) دواړه اصطلاح ګانې د واحد داستاني اثر لپاره کاروو. ناول یا رومان په حقیقت کې یو نسبتاً اوږد داستاني روایت دی. په دغه روایت کې شخصیتونه (یا شخصیت) د پېښو په یوه پرله پسې لړۍ کې انځورېږي. د رومان د اوږدوالي او حجم په اړه بېلابېل نظرونه ورکړل شوي دي. له دېرش څخه تر څلوېښت او پنځوس زره کلمو پورې یې ورته کم حد ټاکلی او تر دې هر څومره زیاتېدلی شي. هر ناول او رومان د ژوند د پېښو روایت دی او په هغو کې کرکټرونه، د پېښو کرکېچ، صحنې، اړیکې او نور شامل دي. د څېړونکو په نظر: ناول هغه خلاق منثور روایت دی چې په لازمه توګه د پېښو تسلسل ته پاملرنه کوي. په ناول کې یو شمېر شخصیتونه (کرکټرونه) په ځانګړو صحنو او پېښو کې ګډون لري. که لنډه کیسه یوازې یو ساز ته ورته وي (د ساز یوې آلې ته)، نو ناول او رومان یوه سمفوني یا ارکسترا او د سازونو یوه ټولګه ده.

ناول لومړی زموږ ادبیاتو ته د ژباړې په بڼه راغلی دی. مخکې تر دې چې په پښتو ژبه ناول ولیکل شي، له اردو ژبې څخه پښتو ته ځینې ناولونه راوژباړل شول.

په دې لړ کې دوه لومړني ژباړل شوي ناولونه د یادولو وړ دي: نقش نګین یا ((مرآة العروس)) او ((توبة النصوح)). دواړه ناولونه په اردو ژبه د هند د نومیالي لیکوال او شاعر ډپټي نذیر احمد خان په قلم لیکل شوي دي. مرآة العروس د ((نقش نګین)) په نامه د ارواښاد میا حسیب ګل کاکاخېل له خوا او توبة النصوح د ارواښاد میا محمد یوسف کاکاخیل له خوا په پښتو ژباړل شوي دي.

ډپټي نذیر احمد خان د هند د نیمې وچې له مخکښو ادبي شخصیتونو څخه ګڼل کېږي. د هغه په آثارو کې د ټولنیز انتقاد روح ډېر پیاوړی دی او د اردو ژبې لومړنی ناول لیکونکی ګڼل کېږي.

د ډپټي نذیر احمد خان دغه یاد شوي ناولونه په پښتو ژبه لومړني ژباړل شوي ناولونه دي. نقش نګین له ۱۸۷۷م. کال څخه مخکې له اردو څخه په پښتو ژباړل شوی، خو په ۱۹۵۷م. کال کې په پېښور کې چاپ او خپور شوی دی، خو توبة النصوح په ۱۹۰٤م. کال کې په پښتو ژباړل شوی او پر همدغه کال چاپ شوی دی.

په پښتو ژبه لومړنی لیکل شوی ناول د پیاوړي لیکوال سید راحت زاخیلي په قلم د ((نتیجهٔ عشق)) یا ((ناول د ماه رخې)) په نوم کښل شوی او په ۱۹۱۰م. کال کې په پېښور کې چاپ شوی دی.

له دغه لومړني ناول څخه وروسته تر ډېرو کلونو پورې په کوزه پښتونخوا کې د کوم ناول د لیکلو پته نشته. بیا نو په بېلابېلو وختونو کې دغه ناولونه ولیکل شول:

_ په ۱۹۵۰م. کال کې د صاحبزاده محمد ادریس ((پېغله)) نومې ناول چاپ شو.

_ په ۱۹۵۷م. کال کې د اشرف دراني لیکلی ناول د ((زړکې سترګې)) په نوم خپور شو.

_ په ۱۹۵۷م. کال کې د حمزه شینواري ((نوې چپې)) نومی ناول چاپ شو.

له دغو څو لومړنیو ناولونو سره سم او ترې راوروسته دغه نور پښتو ناولونه هم چاپ

شوي دي:

ـ د رشيد علي دهقان: ((د سرو تعويذ))

ـ د محمد ابراهيم شبنم (خوابنې او نړور)

ـ د سيد رسول رسا دغه پنځه ناولونه: مفرور، شمی، خودکشي، مامونۍ او ميخانه.

ـ د ډاکټر شير زمان غمژن طايزي دغه پنځه ناولونه: ګل خان، امانت، رحمان کورونه، غونډۍ او واده ونه شو.

په کوزه پښتونخوا کې تر دې وروسته هم دغه لړۍ راروانه ده او اوس يو زيات شمېر ناولونه ليکل شوي او خپاره شوي دي.

په افغانستان کې هم دغه لړۍ له ژباړې څخه پيل شوې ده. هغه لومړنی ناول چې په افغانستان کې په پښتو ژبه ژباړل شوی دی، د فرانسې د نوميالي ليکوال ويکتور هوګو (بيوزلان) نومې ناول دی. دغه ناول د استاد عبدالحی حبيبي په قلم ژباړل شوی او په ۱۳۱۰هـ. ش. کال کې د کندهار د ((طلوع افغان)) جريدې په پاڼو کې په پرله پسې توګه خپور شوی دی.

دلته په پښتو ژبه لومړنی ليکل شوی ناول د برهان الدين کشککي په قلم ليکل شوی او په ۱۳۱۷ هـ. ش. کال کې خپور شوی دی. سره له دې چې د دې ناول پر څنډه ليکل شوي چې اصلي موضوع يا سوژه يې له بهرنيو مطبوعاتو څخه اخيستې ده، خو خپله د ليکوال په قلم ليکل شوی او ژباړه نه ده. د نوموړي ليکوال يو بل ژباړلی ناول په همدغه وخت کې خپور شو چې ((په پټه د پټو پلټنې)) نومېږي، دا يو په زړه پورې پوليسي ناول دی.

تر دې وروسته په افغانستان کې د ډېرو ليکوالو ناولونه چاپ او خپاره شوي دي.

په افغانستان کې په وروستيو کلونو کې يو شمېر نور ناولونه هم ليکل شوي او اوس زموږ ځوانو ليکوالو هم د هنري ادبياتو دغې برخې يا ژانر ته ځانګړې پاملرنه کړې او په زړه پورې ناولونه يې ليکلي دي.

د متن لنډیز:

په کوزه پښتونخوا کې په پښتو ژبه لومړني ژباړل شوي ناولونه ((مرآة العروس)) یا ((نقش نگین)) او ((توبة النصوح)) دی. لومړنی ناول د سید راحت زاخیلي په قلم په ۱۹۱۰م. کې لیکل شوی او ((نتیجهٔ عشق)) یا ((ناول د ماه رخې)) نومېږي. په افغانستان کې لومړنی ژباړل شوی ناول د ویکتور هوګو (بېوزلان) دي. لیکل شوی پښتو ناول د برهان الدین کشککي ((پټه مینه)) ده. په کوزه پښتونخوا او افغانستان کې تر دغو لومړنیو آثارو وروسته ګڼ شمېر ناولونه لیکل شوي چې شمېر یې لسګونو ته رسېږي.

## فعالیتونه

۱ـ زده‌کوونکي دې په وار سره د دې لوست یو یو پراګراف ولولي او نور ټولګیوال دې غوږ ورته ونیسي.

۲ـ زده‌کوونکي دې دغو پوښتنو ته ځواب ووایي:

- په افغانستان کې په پښتو ژبه لومړنی ناول کوم یو دی، لیکوال او ژباړونکی یې څوک دی؟
- په کوزه پښتونخوا کې په پښتو ژبه لومړني نالونه څه نومېږي، د لیکوال او ژباړونکو نومونه یې واخلئ؟
- د سید راحت زاخیلي په قلم لیکل شوی لومړی پښتو ناول څه نومېږي؟
- د برهان الدین کشککي د یو لیکلي او یو ژباړلي ناول نومونه واخلئ؟

۳ــ څو تنه زده‌کوونکي دې په دغو موضوعاتو خپلو ټولګیوالو ته لنډ لنډ معلومات ورکړي:

الف: د ناول او رومان ترمنځ څه اړیکې دي؟

ب: په کوزه پښتونخوا کې د ناول لیکنې تاریخي بهیر

ج: په افغانستان کې د ناول لیکنې تاریخي بهیر

٤ــ زده‌کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي، لومړنۍ ډله دې په پښتو ژبه د لیکل شوو ناولونو د یو یو نوم اخلي او د بلې ډلې یو تن دې د دغه ناول د لیکوال نوم یادوي. زده‌کوونکي کولی شي چې په دې لوست کې د یادو شوو ناولونو نومونه واخلي او که د نورو پښتو ناولونو نومونه ورته یاد وي یا یې لوستي وي، د هغو نومونه هم اخیستلی شي.

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د یو داسې ناول په اړه لنډ معلومات ولیکي چې لوستلي یې وي. دغه معلومات دې په دوو مخونو کې ولیکي او دغو ټکو ته یې پام ضرور دی:

۱ــ د ناول لنډه پېژندنه، نوم، لیکوال، یا ژباړونکی، د مخونو شمېر، د چاپ ځای او کال.

۲ــ د ناول د کیسې یا موضوع لنډه معرفي.

۳ــ په ناول کې یې څه شی خوښ شوی او کومه برخه یې نه ده خوښه شوې او ولې؟

په بله ورځ دې یې خپلو ټولګیوالو ته واوروي او یا دې یې په ټولګي کې د خپلو یادښتونو له مخې لنډې خبرې وکړي.

## حکایت

حاتم طايي چا وپوښته چې له ځانه دې هم بلند همت څوک ليدلی دی، يا دې اورېدلی دی؟

وې ويل: يوه ورځ مې څلوېښت اوښان ذبح کړي وو.

اسيران مې د عربو او فقيران بللي وو. ناګاه مې په صحرا يو خارکش وليده، د لرګيو ګېډۍ په سر. ورته مې وويل چې په مهمانۍ د حاتم ولې نه ور درومې؟ خلک پرې جمع شوي دي، دعوت يې عام کړی دی.

وې يې:

هر چې خوري د خپل منت روټۍ
څه به کاندي د حاتم د اوښ بوټۍ

هغه شخص مې په همت په جوانمردۍ ترځان هسک وليده.

((ګلدسته))

انديښنه که په غره کښېږدي
غر به هم لکه ويښته کا
خوار سړی ملامت نه دی
که په غم کې ځان اوبه کا

((خوشحال خان خټک))

# ويکتور هوګو
# د فرانسې نوميالی ليکوال



ـ د نړۍ د څومره ليکوالو نومونه مو زده دي؟

ـ آيا د کومو نړيوالو ليکوالو کتابونه مو لوستي دي؟

ـ د ويکتور هوګو نوم مو اورېدلی، يا مو د هغه کوم کتاب لوستی دی؟

د نړۍ د ادبي څېرو په لړ کې ويکتور هوګو خپل ځانګړی ځای لري. هغه په نولسمه پېړۍ کې د فرانسې او ټولې نړۍ د سترو شاعرانو او ليکوالو په کتار کې شمېرل کېږي.

په دې لوست کې د نړۍ د دغه نوميالي شاعر او ليکوال په اړه معلومات ترلاسه کوئ.

ویکتور هوگو په ۱۸۰۲م. کال د فرانسې په ختیځ (بیزانسون) کې وزېږېد. نیکه یې د یو داسې بزګر زوی و چې د (نانسي) په ښار کې یې ترکاڼي هم کوله. پلار یې په پوځ کې خدمت غوره کړ او د ناپلیون په لښکر کې تر جنرالۍ ورسېد. د هوګو مور د یو بېړۍوان لور وه.

هوګو په وړوکتوب کې ډېر کمزوری او بې ځانه و. هېچا هم داسې فکر نه کاوه چې ماشوم ویکتور دې ګوندې ژوندی پاتې شي، خو هغه ژوندی پاتې شو او داسې ژوندی چې ژوندیتوب او د ژوند یادونو او ویاړونو یې تر مرګ وروسته هم دوام وکړ.

لومړی یې په پاریس کې زده کړې پیل کړې او څه وخت وروسته یې په ریاضي، شعر او لاتیني ژبه کې بې ساری پرمختګ وکړ او خپلې زده کړې یې بشپړې کړې. څرنګه چې د ویکتور هوګو پلار د جنرالۍ په دنده کې کله په یوځای او کله په بل ځای کې و، نو د هوګو ژوند هم ټول یا زیاتره په سفرونو کې تېر شو. بېلابېل ښارونه او هېوادونه یې ولیدل. په پای کې له خپلې کورنۍ سره یوځای پاریس ته لاړ او هلته یې استوګنه غوره کړه، دغو سفرونو د هوګو پر ژوند او ذهن پوره اغېز وکړ.

په پاریس کې له استوګنې سره سم دوی له یوې بلې پوځي کورنۍ سره اړیکې پیدا کړلې او په دې کورنۍ کې د (ادل) په نوم له یوې نجلۍ سره یې مینه پیدا شوه او په پای کې یې ورسره واده وکړ.

هوګو د پاریس په (دارالفنون) کې زده کړو ته دوام ورکړ. همدلته یې خپل لومړني شعرونه وویل. لومړنیو شعرونو یې د ښوونځي جایزه وګټله. د فرانسې د هغه وخت یو نومیالي شاعر او لیکوال ((شاتوبریان)) هغه ته د یوه ((عالي ماشوم)) نوم ورکړ.

له خپل ورور سره یې یو ځای یوه پنځلس ورځنۍ مجله خپره کړه. په دې مجله کې یې په خپل نامه او نورو مستعارو نومونو مقالې خپرې کړې، داسې مقالې چې د وخت د ادبي او ان سیاسي محافلو پام وړ شوې. نوموړی د همدغې مجلې په پاڼو کې لازم شهرت ته ورسېد. د دربار ستاینې یې هم وکړې او د پاچا له لوري یې شعرونو ته جایزې هم ورکړل شوې او د دوو زرو فرانکو د تنخواه یوه دنده هم ورسپارل شوه.

له دې وروسته د هوګو ادبي هلې ځلې زیاتېږي. په ادبي مجالسو کې له لیکوالو او

شاعرانو سره اړیکې پیدا کوي او ادبي غونډې هم جوړوي. تر ۲۵ کلنۍ پورې د دربار پلوی و. تر هغه وروسته یې ملاتړ شکمن کېږي یا مشروطه بڼه غوره کوي.

هغه ته دا نظر پیدا کېږي چې د هېوادونو او ولسونو د پرمختګ او بریالیتوب لپاره آزادي ډېره ضروري ده. د خپل همدغه نظر لپاره د ((کرمول)) په نوم یوه ډرامه او د ډرامې سریزه لیکي. دغه ډرامه او سریزه یې دومره اهمیت پیدا کوي چې په فرانسه کې د رومانتیزم د ادبي مکتب پیل ګڼل کېږي.

ویکتور هوګو په خپل ژوند کې له زیاتو کړاوونو سره هم مخامخ شو، اولادونه یې په پرله پسې توګه مړه شول او د یوې لور مړینې دومره وځوراوه چې څو کاله یې قلم له لاسه وغورځېد.

په ۱۸۴۱م. کال کې هوګو له درې ځلې ماتې وروسته د فرانسې د اکاډمۍ په غړیتوب ومنل شو. د فرانسې پاچا (فلیپ لویي) له هوګو سره ځانګړې دوستي لرله. د همدغې دوستۍ له کبله هغه څو ځله د انتصابي سناتور په توګه د مشرانو جرګې غړی شو.

په ۱۸۴۸م. کال په فرانسه کې کورنۍ اړ و دوړ شروع شو. ولس د بدمرغۍ په لمبو کې سوزېده. هوګو په همدغه وخت کې د خپل ولس په ګټه سیاست ته ورودانګل. د هغه وخت یو بل نامتو شاعر ((لامارتین)) د هوګو په همکارۍ وړاندیز وکړ چې یو موقت حکومت دې جوړ شي او په موقت حکومت کې هغه د پوهنې د وزیر په څوکۍ وټاکل شو، خو اړ و دوړ روان و. هوګو د سلطنت ضد ډلو کلک ملګری شو او له همدې نېټې څخه یې د فرانسې له پاچا ناپلیون سره دښمني پیل شوه.

هوګو به د بې وزلو خلکو پلوي کوله، وېناوې به یې کولې او زیات محبوبیت یې پیدا کړ، کله چې ((لویي ناپلیون)) د فرانسې پاچاهۍ ته ورسېد، غوښتل یې چې د خپل واک د ټینګښت لپاره یو ځواکمن ګوند جوړ کړي. په همدې وخت کې هوګو د ناپلیون سخت مخالفت پیل کړ. ناپلیون بریالی شو، د هوګو په ګډون ۸۴ تنه د عامه امنیت د تخریبوونکو په نوم معرفي او د فرانسې له خاورې څخه تبعید شول. هغه لومړی بروکسل او بیا انګلستان ته لاړ او هلته یې د ((ژرسي)) او ((کرنسي)) په جزیرو کې د تبعید عمر تېراوه. د تبعید په

وخت کې يې خپل په زړه پورې آثار وليکل.

په ۱۸۷۰م. کال کې له ۱۹ کلن تبعيد وروسته فرانسې ته راستون شو، څو ځله د خلکو له خوا د فرانسې د شورا د غړي په توګه وټاکل شو. هغه په ۱۸۸۵م. کال کې د ۸۳ کالو په عمر مړ شو.

د ويکتور هوګو په ليکل شوو کتابونو کې ((بېنوايان)) تر ټولو مشهور دی. دغه اثر ډېر زيات نړېوال شهرت لري، خو يو شمېر نور مهم کتابونه يې دا دي:

هغه سړی چې خاندي، د خزان پاڼې، بدمرغان، مکافات، انتقام، سمندري کارګران او يو شمېر نور...

((د يو محکوم سرګذشت)) د هوګو له وروستيو په زړه پورې آثارو څخه شمېرل کېږي. په دې داستان کې د يو داسې انسان د محکوميت غږ اورېدل کېږي چې په اعدام محکوم شوی دی. هغه د زندان له تورتم څخه خپلې ښځې ته خپل سرګذشت ليکي. په دغه وير لړلي سرګذشت کې د محکوم د خپل ژوند او د نورو خلکو د ژوند ځينې اړخونه او واقعيتونه را تر سترګو کېږي. هغه خپل دغه داستان د پانسی پر ضد ليکي، هوګو غواړي په دې اثر کې په مجموع کې د ((انسان)) او ((انسانيت)) دفاع وکړي. هغه د انسان وژنې سخت مخالف دی.

ويکتور هوګو نه يوازې دا چې د فرانسې لوی شاعر او ليکوال و، په خپله پېړۍ کې د نړۍ د سترو ليکوالو په کتار کې شمېرل کېږي. له همدې کبله هغه ته د خپلې پېړۍ د ښوونکي نوم هم ورکړل شوی دی.

د متن لنډيز:

د نړۍ د نوميالیو شاعرانو او ليکوالو په لړ کې ويکتور هوګو زيات شهرت لري. هغه په ۱۹مه پېړۍ کې د فرانسې نامتو ليکوال او شاعر دی. هغه د رومانتيزم د ادبي مکتب له بنسټ ايښودونکو څخه ګڼل کېږي. د ځينو مشهور اثارو نومونه يې دادي:

بېنوايان يا (بېوزلان)، کرمول، د يو محکوم سرګذشت، هغه سړی چې خاندي، مکافات، بدمرغان، انتقام، سمندري کارګران او يو شمېر نور...

ويکتور هوګو د خپل ژوند ډېر کلونه له (ناپليون) سره د مخالفت له کبله په تبعيد کې تېر کړل.




**د رومانتيزم ادبي مکتب:** د نړۍ په ادبي مکتبونو کې ځينې مشهور يې دا دي: کلاسيسيزم، رومانتيزم، سمبوليزم، رياليزم او نور... د رومانتيزم ادبي مکتب د اتلسمې پېړۍ په پای او د نولسمې پېړۍ په پيل کې په اروپا کې راڅرګند شو. مخکښان يې په انګلستان کې: ويليام بليک اوکالريج، په جرمني کې: ګويته او شيلر او په فرانسه کې ويکتور هوګو، شاتو بريان او لامارتين دي. رومانتيزم په حقيقت کې يو انقلابي غورځنګ و او شعارونه يې تر ډېره حده د روڼ اندۍ د دوران فلسفي او سياسي بڼه لري، د انسان د آزادو احساساتو بيان او د فردي حقوقو تأييد يې د شعارونو لومړنۍ کرښې وې. دغه ادبي مکتب د کلاسيزم د ادبي مکتب د چوکاټونو پر وړاندې د نوو افکارو د لرونکو ليکوالو او شاعرانو له لوري رامنځته شو او په ټوله اروپا او نړۍ کې خپور شو. دغه کلمه ځينو کسانو د رومانتيسيزم په بڼه هم ليکلې ده چې دواړه د يو مفهوم لپاره کارول کېږي. رومانتيزم په حقيقت کې د کلاسيکو منل شوو زړو ادبي قوانينو پر وړاندې د بغاوت رنګ لري. د دوی په نظر د کلاسيزم د مکتب وچ او زاړه چوکاټونه نور د نوي عصر فلسفي او ادبي غوښتنو ته ځواب نه شي ويلی. څېړونکو ۱۸۳۰م. کال د ادبي انقلاب کال ګڼلی دی. په دې کال کې ويکتور هوګو او ملګرو يې رومانتيزم د هنر او شخصيت د آزادۍ د مکتب په عنوان معرفي کړ. رومانتيک هنرمند او ليکوال د خپل روح غوښتنو او اړتياوو ته زيات ارزښت ورکوي او ځانګړي احساسات پکې خپل ځای لري.



## فعالیتونه

۱ـ زده‌کوونکي دې په نوبت سره د لوست یو یو پراګراف په لوړ غږ خپلو ټولګیوالو ته ولولي.

۲ـ زده‌کوونکي دې دغو پوښتنو ته ځواب ووایي:

ـ ویکتور هوګو په کومه پېړۍ کې په کوم هېواد کې اوسېده؟

ـ د هوګو د ژوند عمده او مهمې پېښې کومې دي؟

ـ ویکتور هوګو د کوم ادبي ښوونځي یا مکتب او لارې له مخکښانو څخه شمېرل کېږي؟

۳ـ زده‌کوونکي دې دغه څلور ځوابه پوښتنه کې سم ځواب په نښه کړي:

ویکتور هوګو د دغو کتابونو یا آثارو لیکوال دی:

الف: بېنوایان (یا بېوزلان)، د یو محکوم سرګذشت، هغه سړی چې خاندي

ب: د یو محکوم سرګذشت، رومیو او ژولیت، بېنوایان (یا بېوزلان)

ج: هغه سړی چې خاندي، ګیتانجلي، اتللو

د: بېنوایان (یا بېوزلان)، جګړه او سوله، هغه سړی چې خاندي.

٤ـ څلور تنه زده‌کوونکي دې د لوست عمده عمده ټکي په خپلو الفاظو کې خپلو ټولګیوالو ته ووایي.



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د نړۍ د یو داسې لیکوال یا شاعر په اړه یا د هغه د کوم اثر او کتاب په اړه یو مخ لیکنه وکړي چې پېژني یې، که یې د هغه کوم کتاب لوستی وي، د کتاب په اړه دې معلومات ولیکي او که د شاعر او لیکوال په اړه یې څه لوستي وي، هغه دې په خپل قلم ولیکي او په راتلونکي پښتو درسي ساعت کې دې یې ټولګیوالو ته واوروي.



# ژوند او چاپېریال

د چاپېریال په اړه مو څه اورېدلي دي؟

د ژوند ښه چاپېریال د سالم او هوسا ژوند لپاره څومره اړین دی؟

په دې لوست کې له تاسو سره د ژوند او چاپېریال په اړه خبرې لرو. ژوند پر چاپېریال څه اثر لري؟ یا دا چې چاپېریال د ژوند لپاره څومره ارزښت لري؟ دغه ډول موضوع گانې زموږ او ستاسو د ژوند لپاره ډېر اهمیت لري او باید جدي پام ورته وشي. په تېرو لوستونو کې مو د چاپېریال په اړه مطالب لوستي دي. په دې لوست کې په ځانگړې توگه د ژوند او چاپېریال پر اړیکو تاسو ته ځینې مطالب وړاندې کوو.

ژوند او د ژوند چاپېریال په ډېرو برخو کې یو له بل سره نژدې اړیکې لري. د موجوداتو ژوند پر خپل شاوخوا او چاپېریال ژور اغېز لري او دغه راز چاپېریال هم د انسانانو، حیواناتو او نباتاتو پر ژوند هر اړخیز اثر غورځوي.

موږ ته لازمه ده چې د خپل ژوند چاپېریال ته تل پام وکړو، دغه کار نه یوازې دا چې زموږ د ځان لپاره ګټور دی، د ټولو انسانانو او ټولې نړۍ لپاره ګټور دی. د چاپېریال د پاک ساتلو، د چاپېریال د ارزښت، د چاپېریال د اړتیاوو او نورو موضوع ګانو په اړه باید نه یوازې دا چې ځانونه پوه کړو، نورو ته یې په پوهولو کې هم هلې ځلې وکړو.

که موږ خپل چاپېریال ته پام ونه کړو، له ډېرو ستونزو سره مخامخ کېږو، تر ټولو مهمه خبره دا ده چې نن سبا ټوله نړۍ د چاپېریال د ککړتیا له ستونزو سره لاس او ګرېوان ده. هوا ککړه شوې ده، اوبه ککړې شوې دي، په نړۍ کې د نفوسو د زیاتوالي له امله د ښکاك او خوراك د موادو د کمښت په څنګ کې د ژوند چاپېریال هم له ګڼو ګواښونو سره مخامخ دی. د چاپېریال او هوا ککړتیا پر اقلیم هم اغېز کړی دی. د ټولې نړۍ د تودوخې کچه د لوړوالي خوا ته درومي. له دې کبله د نړۍ د یخونو سترې سمندري زېرمې د ویلي کېدو په حال کې دي. دا ټولې نړۍ ته یو ستر ګواښ دی.

د هوا د ککړتیا له امله بېلابېل رنځونه راپیدا کېږي، لکه: د وینې پرنډوالی، د تنفس بېلابېلې ناروغۍ، حساسیتونه او نور... د دغې ککړتیا لاملونه ډېر زیات دي او هرې برخې ته یې پاملرنه ضروري ده. د صنعت له ودې سره سم چاپېریال ته او د هوا او اوبو ککړتیا ته ډېر ګواښونه ورمخامخ دي. له یوې خوا بېلابېل ګازونه او لوګي، د سون توکي او نور پر هوا ورګډېږي او د تنفس له لارې د انسانانو او حیواناتو سږو ته ورداخلېږي او دا د هغوی بدن ته سخت تاوان وراړوي. ان چې پر نباتاتو، ونو او سبو هم خپل اغېز لري. په ډېرو هېوادونو کې د دغو لوګیو او ګازونو د تصفیې لپاره لارې چارې نه دي لټول شوي او له همدې کبله یې نړۍ ته زیانونه په پرله پسې توګه مخ پر زیاتېدو دي.

اوبه د نړۍ لپاره ډېر اهمیت لري. د ټولو موجوداتو لپاره اوبه حیاتي ارزښت لري، یعنې

دا چې د ټولو موجوداتو ژوند وربورې تړلی دی. ویل کېږي چې د نړۍ ۹۸ په سلو کې اوبه مالګینې او تروې دي، دوه په سلو کې خوږې او په سلو کې یوه برخه یې زموږ لپاره د ګټې وړ دي. انسانان نه یوازې د څښلو لپاره، بلکې د ژوند د ټولو فعالیتونو لپاره د اوبو کارولو ته اړ دي. کرنې ته اساسي ارزښت لري. اوس د نړۍ د اوبو اساسي زېرمې ډېرې کمې شوې دي. د زېرمو د کمېدلو په څنګ کې له بده مرغه دغه اوبه د بېلابېلو عواملو له امله ککړې شوې دي. د صنعتي پارکونو او کارخانو د جوړېدو او زیاتېدو له امله، د نفوسو د زیاتوالي له امله، د کانالیزاسیون د نه لرلو له امله، د روغتیایي نه مراقبت او څارنې او دغه راز د نورو عواملو له مخې د اوبو ناپاکی زیاتې شوي او اوبه ککړې شوې دي.

د څړ ځایونه، ځنګلونه، بڼونه او چمنونه له ګواښونو سره مخامخ دي. زیاتره خلک پر خپل سر ځنګلونه وهي او څړځایونه له منځه وړي، له همدې امله د باران کمښت، د اوبو لږوالی، د اقلیم تودوخه او د چاپېریال ککړتیا ناوړې پایلې رامنځته کوي. موږ باید دغو ټولو خواوو ته غور وکړو چې د ژوند چاپېریال مو له دې زیات خراب نه شي.

زموږ خلک د کثافاتو او فاضله موادو د راټولولو، په یو ځای کې د جمع کولو او یو مناسب ځای ته د وړلو، ښخولو یا له منځه وړلو لپاره وړ امکانات او شونتیاوې نه لري. دغه کار هم ډېرې ناوړې پایلې لري، په تېره بیا زموږ ښارونه یې ډېر چټل کړي او له کثافاتو ډک کړي دي. د ګڼو ناروغیو لپاره دغه کثافات د مکروبونو او ناروغیو د زېرمو په توګه د پام وړ دي.

جنګونه نور هغه لاملونه دي چې د چاپېریال لپاره لوی ګواښ ګڼل کېږي. د باروتو خپرېدل، د چاودو او ناچاودو توکو پرېماني او د ټانکونو، شوبلو او الوتکو لوګي او د تېلو لګښت چاپېریال سخت زیانمنوي او خطرناک رنځونه زېږوي. زموږ په ګران هېواد افغانستان کې له سپېڅلي جهاد راوروسته کورنیو جګړو، نه یوازې دا چې هېواد یې لوټې لوټې کړی او انسانان یې وژلي، بله ستره بدمرغي یې دا رامنځته کړې ده چې زموږ د ژوند چاپېریال ته یې ګڼ شمېر زیانونه اړولي دي. له همدې امله د سولې د کوترو الوتل، د هېواد

د نیکمرغۍ او د ژوند د چاپېریال د نېکمرغۍ زیري هم له ځانه سره لري.

اوس نو راځو دې ته چې د چاپېریال د ښې ساتنې لپاره باید موږ او تاسو په ګډه څه وکړو:

۱ـ په لومړي ګام کې باید د خپل ځان، خپل کور، خپل کلي او ښار او په عمومي توګه د خپل هېواد د پاک ساتلو لپاره هلې ځلې وکړو.

۲ـ د چاپېریال د ستونزو، ګواښونو او اړتیاوو په اړه باید هم خپل ځان وپوهوو او هم پرې خپله کورنۍ او خپل ملګري پوه کړو. لازمه ده چې د پوهاوي دغه لړۍ همېشنۍ بڼه غوره کړي.

۳ـ موږ باید د خپل چاپېریال په اړه بې پروا ونه اوسو او هر هغه څوك چې ګورو خپل شاوخوا، خپله لار، سرك، کوڅه او نور چټلوي، باید خپلې تېروتنې ته یې پام ور وګرځوو.

٤ـ هر څوك باید ځان د ټولنې پر وړاندې مسؤول وګڼو. له حکومتي چارواکو څخه نیولې تر یو کلیوال پورې ټول د خپل شاوخوا د پاك ساتلو مسؤولیت لري، باید موږ په دغه بهیر کې خپل مسؤولیت سرته ورسوو.

د ښوونځیو د شاګردانو لپاره په ځانګړې توګه دې چارې ته غور په کار دی. زده‌کوونکي کولی شي چې هم د ښوونځي په چاپېریال کې، هم د خپل کور، کلي او ښار د پاك ساتلو په کار کې پوره ونډه واخلي. د وطن ځوان نسل د هېواد د راتلونکي په سمسورولو، وده او پرمختګ کې پوره ونډه لري. له همدې امله لازمه ده چې د خپل چاپېریال په ساتنه او دغه راز د خپلې کورنۍ نورو غړو، د کلي او ښار خلکو او په تېره بیا خپلو همزولو او کشرانو ته د دغې چارې د ترسره کولو په لاره کې لازمې مشورې ورکړي. د دې هېواد هره برخه زموږ د ګډ کور یوه څنډه ده او موږ ته یې پاك او سوتره ساتل یو ملي مسوولیت دی.



## فعالیتونه

۱ـ دغه لوست دې په څلورو برخو وویشل شي. څلور تنه زده‌کوونکي به یوه یوه برخه ولولي، خو د هر تن د متن له لوستلو وروسته به یو بل شاگرد په خپله خوښه د متن د همدې برخې په اړه خپل خپل نظر وایي، یا به خپله خپله تبصره وایي.

۲ـ زده‌کوونکي دې دغو پوښتنو ته ځواب ووایي:

- ژوند او چاپېریال څه اړیکې سره لري؟
- که چاپېریال ته پام ونه شي کومې کومې ستونزې رامنځته کېږي؟
- د چاپېریال د ککړتیا عمده عوامل کوم کوم دي؟
- اوبه څنګه ناپاکې یا ککړېږي؟
- د ژوند پر چاپېریال جنگونه څه اغېز لري؟
- د هوا د تودوخې لاملونه کوم دي؟

۳ـ څلور تنه زده‌کوونکي دې په نوبت سره دې پوښتنې ته جلا جلا ځواب ووایي چې موږ د خپل چاپېریال د ښه ساتنې لپاره باید څه وکړو؟

٤ـ دوه تنه زده‌کوونکي دې د دې لوست د جملو د جوړښت په اړه خبرې وکړي چې ساده او که مرکبې پکې ډېرې دي؟



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې (په خپله خپله خوښه) د خپل کور، کلي یا ښار او یا هم د ښوونځي د چاپېریال په اړه یو مخ لیکنه وکړي، دا دې په نظر کې ولري چې:

۱ـ اوس یې چاپېریال څنګه دی؟

۲ـ څه باید وشي چې د ژوند او کار پر ښه چاپېریال بدل شي؟

۳_ مورۍ ته به د ښه چاپېريال ګټه څه وي؟

٤_ پر دې سربېره چې مورۍ به خپله په دې کار کې ونډه اخلو، په دې لړۍ کې نور کوم کوم مسوولیتونه لرو؟

۵_ دا مو په نظر کې وي چې د ځنګلونو پالل او د شنو سيمو پراخولو ته مو په ليکنه کې پوره پام کړی وي.

لـــــورې ژورې مــــې پـــه ســتــرګـــو کـــې دي
کـــنــدې کـــپـــرې مـــې پـــه ســتـــرګـــو کـــې دي
ســـتـــا د نـــظـــر هــــــرې ادا تـــــه رســـي
داســــــې وزرې مـــې پـــه ســتــرګـــو کـــې دي
عـــشـــقـــه فـــطـــرت دې د نـــګـــهـــت راکـــړی
ګـــنـــې کـــمـــرې مـــې پـــه ســتـــرګـــو کـــې دي
پـــاس چـــې اغـــيـــار راتـــــه کـــتـــلـــی نـــه شي
جـــورې بـــمـــبـــرې مـــې پـــه ســتـــرګـــو کـــې دي
وايـــــم پـــــه زړه کـــــې ورنـــــــــژدې بـــــه شـــمـــه
څـــه لـــــرې لـــــرې مـــــې پـــه ســتـــرګـــو کـــې دي
حـــمـــزه پـــه طـــمـــع لـــــرې نـــه شـــوې چـــرې
څـــه ســـتـــرې ســـتـــرې مـــې پـــه ســتـــرګـــو کـــې دي
((امير حمزه شينواری))

# مقاله څنګه ولیکو؟



تاسو د څه ډول مقالو له لوستلو سره مينه لرئ؟
تاسو خپله تر اوسه کومه مقاله ليکلې ده؟ که مو نه وي ليکلي، غواړئ چې يو څه وليکئ؟
اوسنی زمانه د رسنيو او په تېره بيا د برېښنايي رسنيو د لوی بدلون زمانه ده. پخوا به په ورځپاڼو، جريدو او مجلو کې ډول ډول مقالې خپرېدلې. اوس د دې په څنګ کې په راډيويي او تلويزيوني خپرونو سربېره په ويبپاڼو او ويبلاګونو کې هم ډول ډول ليکنې او مقالې خپرېږي. نورو ته د خپلو نظرونو، افکارو، هيلو او غوښتنو تر ټولو نژدې لار د همدغو مقالو ليکل او خپرول دي. دغه راز په علمي مقالو کې له خپلو نوو څېړنو او ګروېږنو څخه د خلکو د خبرولو غوره لار د همدغه ډول ليکنو او مقالو ليکل او خپرول دي. په تاسو کې کېدای شي ځينې کسان د مقالو له لوستلو او ليکلو سره مينه ولري. د دې لپاره چې تاسو د مقالو ليکلو ته نوره هم ليوالتيا پيدا کړئ، موږ به په دې لوست کې د مقالو په اړه درسره خبرې وکړو. دغه راز به د مقالو د ليکلو لارې چارې د روښنيو. دغه لوست تاسو ته د مقالو د ليکلو غوره لارښود مخې ته ږدي. پوره دقت ورته وکړئ.

مقاله، لیکنې ته وايي، خو هغه لیکنه چې نسبتاً لنډه وي. مقاله په نثر سره هغه لیکنه ده چې لیکونکی یې د یوې ځانګړې موضوع او مطلب د څرګندولو لپاره لیکي. په مقاله کې لیکونکي د خپل نظر وړ ټکي بیانوي او غواړي چې نور خلک یې ولولي او د ده د نظر له ټکو څخه خبر شي.

مقاله له رسالې (یا کتابګوټې) سره له دوو اړخونو څخه توپیر لري. لومړی دا چې د رسالې په نسبت د مقالې لمن لنډه ـ تنګه ده. بله خبره دا ده چې د رسالې په پرتله د مقالې مخاطبین او مینه وال زیات دي، ځکه چې د مقالې د بحث موضوع د رسالې په پرتله عامه وي.

په مقالو کې ځینې یې ډېرې عامې وي چې نژدې د ټولو لوستونکو لپاره لیکل کېږي، موضوع یې هم د انساني ژوند، ټولنې، روانو حالاتو او نورو ټولنیزو پېښو په اړه وي او ډېره ځانګړې یا تخصصي بڼه نه لري. ځینې مقالې بیا ډېرې ځانګړې او تخصصي وي. په تخصصي مقالو کې زیاتره مخاطبین د هماغې څانګې یا برخې مینه وال کسان وي، خو بیا هم عام لوستونکي ترې ګټه اخیستلی شي.

موږ به تاسو ته خبره ډېره ساده کړو. دوه ډوله مقالو لیکلو ته مو باید فکر وي:

**عادي یا اخباري مقاله:** د دې مقالې لوستونکي زیاتره عام مینه وال دي. په دغو مقالو کې ستاسو مخه له ټولو لوستونکو سره وي. که تاسو غواړئ چې د یوې موضوع په اړه عمومي لیکنه وکړئ چې مخاطب مو ټول لوستونکي او عام مینه وال وي او بیا غواړئ دغه مقاله په کومه ورځپاڼه، جریده، مجله یا ویبپاڼه کې خپره کړئ، نو له لیکلو مخکې باید دغو ټکو ته پام وکړئ:

۱ـ یوه داسې موضوع وټاکئ چې هم تاسو ته ډېره مهمه وي او هم اټکل وکړئ چې لوستونکو ته به په دغه وخت کې مهمه او ارزښتمنه وي. د موضوع له انتخاب څخه باید باوري شئ چې یو څه به خلکو ته نوي هم وي.

۲ـ د موضوع له انتخاب وروسته هڅه وکړئ ځان ته هغه ټکي معلوم کړئ چې غواړئ

د خپلې همدغې موضوع په ليکلو کې يې مطرح او څرګند کړئ. د دې موضوع له ليکنې مو خپل هدف بايد ځانته څرګند کړی وي. د هدف لپاره مو بايد سندونه، فکټونه او حقايق له ځانه سره يادداشت کړئ.

۳ـ لومړی هڅه وکړئ چې له ليکلو مخکې خپلې مقالې ته يو چوکاټ وټاکئ. په چوکاټ کې به په يو کاغذ کې د خپلې مقالې اصلي ټکي له ځان سره لنډ لنډ وليکئ بيا به پرې فکر وکړئ او په ليکلو به يې پيل وکړئ.

٤ـ موضوع ته اوږدې سريزې مه ورکوئ، مخامخ خپل مطلب ته راشئ، لومړی د خپلې موخې په اړه وغږېږئ، بيا يې تفصيل وليکئ او په پای کې ترې پايله ترلاسه کړئ.

٥ـ له يوې موضوع څخه بلې او بيا بلې موضوع ته ټوپونه مه وهئ. يوازې په هغه حالت کې چې ستاسو له همدې موضوع سره ښه مرسته کوي او دا موضوع نوره هم روښانوي، کولی شئ بله موضوع ورسره ياده کړئ. له خپلې اصلي موضوع څخه مه بهر کېږئ. بيا لوستونکي درسره تنګېږي او فکر يې پاشل کېږي.

٦ـ خبرې بايد ډېرې ژوولې او کړکېچنې نه وي. په هر څومره اسانۍ سره چې کولی شئ، خپل مطلب بيان کړئ. خپله اصلي خبره، خپل اساسي مطلب په ساده او مخامخ ښه بيان کړئ، خپلې موضوع ته دلايل راوړئ او داسې يې په پېچلې او ژوولې ښه مه مطرح کوئ چې لوستونکي ستاسو د اصلي مطلب او هدف د پيدا کولو لپاره پر خپلو مغزو فشار راوړي او يا دې ته اړ شي چې بيا بيا يې ولولي.

٧ـ د خپلې موضوع تسلسل، د خپلې ليکنې او خبرو تسلسل درڅخه ګډوډ نه شي. کوښښ وکړئ چې هر څه په ترتيب سره بيان کړئ.

٨ـ په ليکنو کې د کلماتو په لوبو پسې مه ګرځئ. دې ته په ساده ټکو کې لفاظي وايي او تاسو بايد هڅه وکړئ چې له لفاظۍ څخه ځان وساتئ. موضوع د بيان په ډول يا الفاظو کې داسې مه رانغاړئ چې وغواړئ مقاله مو په اصطلاح ډېره نغاړلې راشي. نه! په دغو مقالو کې غوڅه خبره غوره ده.

۹ـ کله چې لیکنه مو بشپړه کړه، یو ځل بیا یې په غور او دقت ولولئ. لازم سمون پکې راولئ، بیا یې هم د لوستونکي په توګه په انتقادي نظر ولولئ او هر کله چې ډاډه شوئ چې په لیکنه کې مو خپل هدف ته رسېدلي یاست او لوستونکو ته به هم خپل مطلب ورسولی شئ، بیا یې نو د خپرېدو نیت وکړئ.

## علمي او څېړنیزه مقاله:

د علمي او څېړنیزو (تحقیقي) مقالو لپاره د یوې موضوع په اړه د ډېرو زیاتو معلوماتو لرل، پر موضوع پوره پوهېدل او د ډېرو کتابونو مطالعه لازمي دي.

علمي او څېړنیزې مقالې زیاتره ځانګړې او تخصصي بڼه لري او له همدې امله یې د لیکلو او لوستلو ساحه ځانګړې (یا تر یوه حده محدوده) ده، د تخصص کسان یې لیکي او زیاتره یې له یوې ځانګړې علمي موضوع سره اړوند کسان د لوستلو لېواله وي.

که تاسو هم کله غوښتل چې په یوه موضوع کې علمي او څېړنیزه مقاله ولیکئ، نو لازمه ده چې دغو ټکو ته پام وکړئ:

۱ـ له پرله پسې لوستلو (مطالعې) او لټون وروسته باید ځانته داسې یوه موضوع وټاکئ چې ستاسو په نظر نوې وي او په دې برخه کې ډېرې څېړنې نه وي شوي. که څېړنې شوي دي، نیمګړتیاوې لري او تاسو غواړئ د دې موضوع په اړه نوي ټکي څرګند کړئ. ستاسو په نظر به دغه موضوع د نور زیات لټون غوښتنه کوي.

۲ـ ټول هغه کارونه چې د همدې موضوع په اړه تر تاسو د مخه ترسره شوي، په دقت سره ولولئ او په لازمو برخو کې ترې یاددښتونه واخلئ. له دغو یاددښتونو څخه به په خپله مقاله کې ګټه اخلئ. یاددښتونه به په یو جلا کاغذ کې لیکئ. پر پاس څنډه به د یادښت موضوع لیکئ. بیا به یادښت لیکئ او په پای کې به یې د کتاب نوم، لیکوال، د چاپ کال او وخت او د یادښت د مخونو شمېره لیکئ. دغه لیکنه، ځکه په کار ده چې تاسو به بیا د خپلې مقالې په اخځونو او لمن لیکونو کې خپلې دغه د ګټې وړ منابع لیکئ. د کتابونو په لټون پسې بېلابېلو کتابتونونو ته لاړ شئ او یا له هغو کسانو سره اړیکې پیدا کړئ چې د دې موضوع اړوند کتابونه لري او یا د منابعو او اخځونو په اړه لارښوونه درته کوي.

۳_ د یادښتونو له بشپړېدو وروسته، خپلې مقالې ته یو چوکاټ جوړ کړئ.
کوم کوم ټکي غواړئ چې په پرله پسې توګه یې بیان کړئ، د موضوع تسلسل ته لازم غور وکړئ، پر چوکاټ بیا ځلې نظر واچوئ.
٤_ خپله لیکنه په پوره غور او دقت سره ولیکئ.
٥_ خپله لیکنه بیا بیا ولولئ، سمونه پکې وکړئ او هر کله چې پرخپله لیکنه ډاډه او باوري شوئ نو مقاله د خپرېدو لپاره رسنیو ته وسپارئ.

د متن لنډیز:
مقاله د نثر په بڼه هغه لیکنه ده چې د یوې ځانګړې موضوع په اړه په نسبتاً لنډه توګه لیکل کېږي. مقاله له رسالې یا کتابګوټي او کتاب سره دا توپیر لري چې: ۱- مقاله لنډه وي. ۲- د مقالې موضوع د رسالې او کتاب په پرتله یو څه عامه وي، یا د عامو لوستونکو لپاره وي.
د مقالو په اړه باید ووایو چې په عمومي توګه په دوو برخو کې ورته غور لازم دی: لومړی عامې، عادي او اخباري لیکنې دي. په دغو مقالو کې هغه کېږي چې عام لوستونکي مخاطب وي. د داسې لیکنو مینه وال عام خلک دي. ډېر لوستونکي یې لولي او ډېره تخصصي او ځانګړې بڼه نه لري.
علمي او تحقیقي مقالې، تخصصي لیکنې او څېړنې دي. دغه مقالې زیاتره په یوه علمي ځانګه کې د متخصصو کسانو له خوا لیکل کېږي او پر څېړنیز اړخ یې ټینګار کېږي.

## څرګندونې

وېبپاڼه: د برېښنايي رسنیو یو ډول دی چې د انټرنېټ له لارې وړاندې کېږي.
وېبلاګ: د ځانګړو کسانو د خپلو اثارو او لیکنو د رسنۍ په توګه کار ورکوي. وېبلاګ داسې وي، لکه: د یو ځانګړي کس یا کسانو د خپرونو او لیکنو آرشیف.



## فعالیتونه

۱ـ زده‌کوونکي دې دغو پوښتنو ته ځوابونه ووایي:

- مقاله څه ته وایي؟
- د مقالې او رسالې توپیر په څه کې دی؟
- د یوې اخباري مقالې د لیکلو په وخت کې مو باید کوم ټکي په پام کې وي؟
- علمي او څېړنیزه مقاله څه ځانګړتیاوې لري؟

۲ـ په اوسنیو اخبارونو، مجلو او ویبپاڼو کې مو د کومو کومو لیکوالو مقالې تر اوسه لوستي دي؟ یو یو زده‌کوونکی دې د یو یو تن لیکونکي نوم واخلي.

۳ـ دوه تنه زده‌کوونکي دې، په دغه موضوع لنډې خبرې وکړي:

- ښه مقاله هغه ده چې ..................................................
- د مقالې د چوکاټ جوړول دغه ګټه لري چې ..............................



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې دغه لوست یو ځل بیا په کورونو کې ولولي او د همدې په رڼا کې دې د خپل شاوخوا یا د دغو ورځو د یوې مهمې موضوع په اړه یوه لنډه مقاله ولیکي. په مقاله کې دې د لوست لارښوونې په پام کې ونیول شي.

# پوهاند عبدالحی حبیبي
# لیکوال او څېړونکی



ـ د پښتو د معاصر ادب د کومو نومیالیو له نومونو سره اشنا یاست؟

ـ د پښتو کوم مشهور تاریخ لیکونکي او څېړونکي پېژنئ؟

پوهاند عبدالحی حبیبي د افغانستان لوی لیکوال، مؤرخ او څېړونکی دی. د معاصر افغانستان په محققینو او لیکوالو کې به ډېر لږ کسان له پوهاند حبیبي سره برابري وکړای شي.

هغه له یوې خوا د ګڼ شمېر ادبي تاریخي او علمي آثارو څښتن دی او له بلې خوا یې لیکنې ډېرې پخې، هر اړخیزې او ژورې دي. په دې لوست کې تاسو ته د هغه د ژوند، کتابونو او علمي هلو ځلو په اړه رڼا اچول کېږي.

د پښتو ادبیاتو په مخکښو معاصرو څېړو کې د پوهاند عبدالحی حبیبي نوم لکه ستوری داسې ځلېږي. د پښتو د معاصر ادب د نومیالیو ستورو په کتار کې د هغه نوم تر ټولو دمخه دی. هغه هم شاعر دی، هم د نوي نثر له مخکښانو څخه دی، هم ژورنالیست و، هم د افغانستان د ګوتو له شمېره د کمو مؤرخینو په ډله کې مخکښ ځای لري، هم د ادبي، علمي څېړنو یوه پیاوړې څېره ده.

عبدالحی حبیبي په ۱۲۸۹هـ. ش. کال په کندهار ښار کې زېږېدلی دی. د کندهار په ښوونځیو کې یې لومړنۍ زده کړې وکړې. بیا په کندهار کې د ((طلوع افغان)) جریدې مرستیال او ورپسې د دې جریدې د مسؤول چلوونکي په توګه وټاکل شو. لس کاله یې دغه جریده وچلوله. په همدې وخت کې ((طلوع افغان)) بشپړه پښتو شوه. د دې په څنګ کې چې له ژورنالیستیک اړخ څخه ډېره په زړه پورې وه، دې جریدې پښتو ادب ته هم د قدر وړ خدمتونه کړي دي.

استاد حبیبي د ((طلوع افغان)) د مسوول مدیر په حیث له دندې څخه وروسته په کابل کې د مطبوعاتو د مستقل ریاست مرستیال او د پښتو ټولنې مشر شو. دلته یې د پښتو ژبې د ودې لپاره بنسټیز کارونه ترسره کړل. د کابل پوهنتون د ادبیاتو پوهنځي له تاسیس سره سم یې نوموړی لومړنی رئیس وټاکل شو.

په ۱۳۲۷ هـ. ش. کال کې د کندهار د خلکو له خوا د ولسي جرګې غړی شو او د وکالت دوره یې لا پای ته نه وه رسېدلې چې د وخت له حکومت سره د اختلافونو له کبله له هېواده بهر لاړ. څه موده یې په کراچۍ کې سیاسي، علمي او ادبي هلې ځلې وکړې او بیا بېرته افغانستان ته راستون شو. څه موده د تاریخ ټولنې رئیس او د صدراعظم فرهنګي سلاکار و. خپلو علمي او کلتوري هلو ځلو ته یې د ژوند تر پای پورې دوام ورکړ.

پوهاند عبدالحی حبیبي له اوږدو ملي، علمي او ادبي خدمتونو وروسته د زړه د ناروغۍ له امله د ۱۳۶۳ هـ. ش. کال د ثور په شلمه نېټه په کابل کې له نړۍ سترګې پټې کړې او په ((شهدای صالحین)) کې خاورو ته وسپارل شو.

استاد حبیبي د خپل له ثمره ډک ژوند په اوږدو کې ډېرې مقالې، رسالې او کتابونه

ولیکل. د افغانستان د تاریخ، کلتور، ادب او نورو بېلابېلو اړخونو په سپړنه او څېړنه کې یې له نوښته ډکې هلې ځلې کړې دي. په پښتو او دري دواړو یې زیات شمېر آثار چاپ او خپاره شوي دي. دلته یې د ځینو کتابونو نومونه اخلو:

د پښتو ادبیاتو تاریخ (دوه ټوکه)، افغانستان بعد از اسلام، پښتانه شعراء (لومړی ټوک)، نومورکي مؤرخین، جنبش مشروطیت در افغانستان، د پښتو ادب په تاریخ کې قصیده، د افغانستان پېښلیک، تاریخ مختصر افغانستان او ګڼ شمېر نور...

د دې په څنګ کې پوهاند حبیبي شاعر او د ادبي- داستاني نثرونو لیکوال هم و. د شعرونو د بېلګې په توګه یې ((د خوشحال روح ته خطاب)) تر سرلیک لاندې د یو نظم ځینې برخې لولو:

د پښتون بهار له تاوه
اې مېړه نره سرداره

تا پښتو ده ژوندۍ کړې
له خټک تر کندهاره

پښتانه تا یادوینه
ننګیالی ښاغلی پلاره

چې پر مرګ دې هېره نه وه
د پښتون د ننګې لاره

تا ویل پس له مرګه هلته تاسې ښخ کئ مړ خوشحال
د مغولو د پښو ګرز یې چېرې نه کي بیا پایمال

نه یې مړ ته خو ژوندی یې
اې ادیبه ننګیالیه

دا ښه نوم دې دایمي دی
په ابد ژوندون ژوندیه

ته زموږ ملي پېشوا یې
د پښتو پلار توریالیه

پښتونواله دې ژوندۍ کړه
د پښتون لوی بریالیه

تا و موږ ته وښودله، د پښتو دا سمه لاره
ستا په توره به نازېږو د پښتو پښتونه پلاره

د پښتون ببرۍ چپه وه | د غزني دوران و تللی
د غوري لويي وه ورکه | د سوري قام و نتلی
د لودين جنډه نسکوره | قطب الدين په زړه داغلی
د مغولو طالع لوړ وو | د اورنګ توغ رپېدلی

يو څو ستا د سوز نارې وې چې پښتون يې راولاړ کړ
که نه ژر وو چې خپل کور يې د مغول په لاس ويجاړ کړ

اروابناد پوهاند حبيبي پښتو داستاني او ادبي نثرونه هم ليکلي دي. په افغانستان کې د پښتو معلومه لنډه کيسه هم په ۱۳۱۵ هـ. ش. کال کې په طلوع افغان کې خپره شوې او د استاد حبيبي په قلم کښل شوې ده. دغه کيسه (چې د ننداري ځانګړنې هم لري) د ((توريالی پښتنه)) په نوم خپره شوې او د ((توريکی)) په نوم په اوسني ليکوال نومې کتاب کې چاپ شوې ده.

د (متلونه) په نوم د پوهاند حبيبي د ليکنې يوه برخه د هغه د علمي آثارو د نثر د نمونې په توګه وړاندې کوو او وينو چې هغه استاد د پښتو متلونو په اړه څومره د کار خبرې لري:

((په پښتو کې متل عين هغه شي ته وايي چې په عربي يې مثل بولي. د پښتو ادب يو مهم ټوک دغه متلونه دي چې په لنډو ويناوو کې حکمتونه او د ګټې خبرې ځای شوي دي. په متلو کې د ملتونو د روحياتو خورا ښې ښې نکتې پرتې وي او ځينې پوهان وايي چې تر شعر لا متلونه د ملتونو پر عقليت ښه دلالت کوي، ځکه چې اشعار د داسې خلکو له کومو راوځي چې فکر او ذهن او عقليت يې تر عوامو لوړ وي، اما متلونه د عوامو له تفکره حکايت کوي او د متلونو الفاظ مصنوعي او پالش شوي نه وي او د عوامو په ژبه وي، نو متلونه د وګړو ږغ ګڼلی شو. متلونه د ملتو د اجتماعي ژوندون او د دوی د عقلي هويت ښکاره کوونکي دي، په مختلفو اوضاعو او کيفياتو کې د تجربو او ازمېښتو نتيجې دي چې په لنډو کلماتو کې ځای شوي دي.

د پښتو متل دی: (جنګ په وسله کېږي او ننګ په غله) له دې متله لاندې خبرې استخراج کېدلی شي:

د پښتنو اجتماعي ژوند پر دوه رکنه ولاړ و. اول له ځان څخه دفاع، دويم يو له بله سره په روغه ژوند کول، په دې متل کې اول ته جنګ او دويم ته ننګ ويل شوی دی. د دوی عسکري احساسات په دفاعي او منظمانه حرکاتو کې او د ننګ جذبات په خپلوۍ او روغه کې د ژوندانه مدار و، وسله په دوی کې مهمه او غله د اړتيا مهم شی و. دې اجتماعي اړتيا دوی زراعت او کرنې ته پاڅول، نو يې په اخلاقو کې زراعتي روحيه او د کرنې قدر کول شامل شول. دا روحيه که څه هم د زړو آريايانو ده او اوستا د دوی زراعتي حالت ښه څرګندوي، مګر په پښتونوالي کې خو دغه زوړ روح بل راز شو او د پښتنو له روحياتو سره سم د ننګ لپاره يوه وسيله شوه او له دې څخه موږ ته څرګندېږي چې د پښتنو د اجتماعي ژوند اساس ((ننګ)) و، نو د ننګ لپاره غله او کښت ضرور و او دې کيفيت د پښتونخوا وګړي اکثر کرونکي او زراعت پيشه کړل.))

((پر پچه وخوت کشمير يې ولېد)) دا بل متل دی او دا راښکاره کوي چې پښتنو پر عين ملي غرور او د ځان په ويسا کې خپل حد نه ورکاوه او بې ځايه تکبر يې نه کاوه.

((د ډېرو لرګی د يوه غورزی)) د اجتماعي تعاون روح څرګندوي.

کله کله په پښتو متلو کې د فلسفې ګرانې خبرې هم راغلي او دا ښيي چې د پښتنو عقليت، سوچ، بدوي او غرنی نه و او د دوی په فکر کې ژورتوب هم موجود و، مګر طبيعي رنګ يې درلود، د صنعتي او موضوعي پوهنو صيقل نه و وهلي))

اروانښاد پوهاند حبيبي د افغانستان له لويو پوهانو، اديبانو او مؤرخينو څخه و. د هغه راپاتې آثار د افغانستان د کلتوري او علمي ميراث يوه ډېره مهمه برخه ده. د ښاغلي عبدالله بختاني خدمتګار په وينا: ((استاد پوهاند عبدالحی حبيبي زموږ د زمانې هغه ستر افغاني ليکوال او مؤلف دی چې زموږ د هېواد او سيمې د ادب او تاريخ د تياره ګوټونو په روښولو کې يې ستر خدمتونه سرته رسولي دي، د ده له آثارو، ليکنو، ويناوو او مشورو څخه زموږ د نسل ليکوالو، پوهانو او محققانو زياته استفاده کړې ده او په دې برخه کې د ده د استادۍ

حق ثابت دی. سربېره پر دې، دی یو داسې معلم او استاد هم و چې د ښوونې او روزنې په چارو کې یې مستقیمه برخه اخیستې ده، د ابتدایي ښوونځي معلمي، د پوهنتون استادي، د پوهنې، ښوونې او روزنې د مقاماتو اداره او لارښوونه او د درسي آثارو تالیف، هغه له شرف او وياړه ډک خدمتونه دي چې د هغو په نتیجه کې د نوموړي پوهاند د استادئ مقام رسماً ثبتېږي.))

د استاد حبیبي پر دغه څلوریزه د دې لوست لمن رانغاړو:

مــړ مــلــت د مــرگ لــه خــوبــه راویــښــېــږي
چــې مــېــړونــه پــه رښــتــیــا ورتــه غــرېــږي
د مــسـیــح پــه دود احــیــا کــانــدي، مــېــړونــه
پــه اواز یــې ولــســونــه ژونــدي کــېــږي




**اوسني لیکوال:** دا د پښتو د معاصرو لیکوالو یوه غوره تذکره ده. د اروانښاد عبدالرؤف بېنوا په قلم لیکل شوې دغه مهم کتاب په دریو ټوکو کې خپور شوی دی. د پښتنو د لیکوالو او شاعرانو ژوند لیک او د آثارو بېلگې پکې خوندي شوې دي.

**اوستا:** اوستا د آریايي زړو ژبو له ډلې څخه ده چې اوس مړه شوې ده. دغه ژبه د (زند) په نوم هم یاده شوې ده. څرنگه چې د زردښتي دین، مذهبي کتاب اوستا نومېږي او دا د نوموړې ژبې او دین په اړه یوازینی راپاتې مستند کتاب دی، نو دا ژبه هم د اوستا په نوم یاده شوې او مشهوره شوې ده. د ژبې د جوړښت او د لغتونو د څېړنې له مخې اوستا له پښتو ژبې سره ډېره نژدې ده.



## فعالیتونه

۱ــ یو ځل دې ټول زده‌کوونکي د استاد حبیبي ((د خوشحال روح ته خطاب)) شعر له ځانه سره په چوپه خوله ولولي. بیا دې یو زده‌کوونکی په خپله خوښه دغه شعر د ټولګي په مخ کې په لوړ غږ د دکلمې په توګه ولولي، معنا دا چې شعر دې په دقیقه توګه ښه او غوره ولولي. په هر ځای کې چې لوستل غوره نه وو، یا ترې د کومې کلمې دقیق تلفظ سم نه ادا کېده، بل زده‌کوونکی دې یې سمه ښه ورته ووایي. د غلطیو له نیولو وروسته دې یو بل زده‌کوونکی همدغه شعر په لا دقیقه توګه په لوړ غږ د ټولګي په مخ کې دکلمه کړي.

۲ــ زده‌کوونکي دې دغو پوښتنو ته ځواب ووایي:

- استاد حبیبي د ژورنالستیک کار په لړ کې کومه دنده ترسره کړې ده؟
- د متلونو په اړه د پوهاند حبیبي نظر څه دی؟
- استاد حبیبي کومه لومړۍ لنډه کیسه لیکلې او خپره کړې ده؟
- په ولسي جرګه کې د استاد حبیبي د غړیتوب او وکالت دوره ولې پوره نه شوه؟
- د (طلوع افغان) جریده په کوم ځای کې خپرېدله؟
- (اوسني لیکوال) د پښتو د کوم پیاوړي لیکوال په قلم لیکل شوی او څو ټوکه دی؟

۳ــ یو یو زده‌کوونکی دې د استاد حبیبي د لیکل شویو کتابونو له ډلې څخه د یو یو نوم اخلي. که کوم زده‌کوونکي د استاد حبیبي د داسې کتاب نوم واخیست چې په دې لوست کې یې نوم نه و راغلی، نو ټول دې شاباش ورته ووایي.

زده کوونکي دې د دې لوست د دغو لغتونو او کلمو په اړه دوه دوه کرښې ولیکي او بله ورځ دې یې خپلو ټولګیوالو ته ولولي: مؤرخ، متل، هویت، تعاون، دکلمه، ویسا.

د اشـــنـــایــــۍ پـــه لــېـونــتـــوب مـــې قــسـم
لــېــونـــی نـــه یـــم چـــې پــــــردو پـــســـې ځـم
راځـــــه چـــې ځـــو د عـــشــق نــغـــري ونـــنـګـــوو
زړه زه پـــه بـــلـــو انــــګـــــازو پــــســـې ځـم
ســپــیــنــو وېــښــتـــو راکــــــړئ پــیــغـــام د تــلــنــې
زه خــــو زلـــمــیـــو ارمـــــانـــــو پـــســـې ځـم
((پوهاند عبدالحی حبیبي))

راشــــــه وغـــــــړوه ســتـرګـــې
د جـــهـــان نـــنــــداره ګــــوره
چـــې ښـایـسـت لـــري پـه سـتـورو
د آســـمـــان نــــنـــداره ګـــوره
د دې خـپـل وجــود پـه بـاغ کې
پــــه هـــرشــــان نــنـــــداره ګـوره
چــې هــر ګــل وتـــه نـظـر کـړې
د بــــاغـــوان نـــنـــداره ګـــوره
((شمس الدین کاکړ))

# د شرابو (الکولو) زیانونه




د نشه يي توکو د زيانونو په اړه تاسو په بېلابېلو ټولگيو کې پوره معلومات ترلاسه کړي دي. دا چې اوس په ټوله نړۍ کې د نشه يي توکو يا مخدره موادو پر ضد پراخې هلې ځلې رواني دي، د دې لامل دا دی چې بېلابېل نشه يي توکي انسانانو ته ډېر زيانونه ور رسوي. په دې لړ کې د شرابو (الکولو) د زيانونو په اړه خبرې سره لرو.

د نشه يي توکو يا مخدره موادو په لړ کې شراب پوره زيانونه لري. اوس پوهان او ډاکټران ټول په يوه خوله دا خبره کوي چې شراب د انسان روغتيا، ودې، ذهني او فکري ثبات ته زيات تاوان ور رسوي. هغوی ټول شراب يوه زهرجنه ماده ګڼي او بشريت ته يې زيانمن شمېري.

د ډاکټرانو په اند، کله چې شراب بدن ته ورداخلېږي، د اعصابو د تحرك سبب کېږي او دا طبيعي خبره ده چې که هر غړی له حده زيات تحريك يا راوهڅول شي، بيا نو له حرکته پاتې کېږي او له سکون او وقفې سره مخ کېږي. همدغه ځنډ او وقفه په زړه او مغز کې د سکتو سبب کېږي او انسان په بېړه له منځه وړي.

امېندوارو ښځو ته د شرابو څښل ډېر تاوان لري، هم خپله هغو مېرمنو ته چې امېندوارې دي او هم د هغوی ماشومانو ته. د نوو زېږېدونکو ماشومانو لپاره په ځانګړې توګه تاوانونه لري. د مېندو له خوا د شرابو استعمال، د نيمګړو او (غير نورمال) ماشومانو د پيدايښت سبب کېږي. کومې طبي څېړنې چې په نړيواله کچه پر امېندوارو ميندو شوې دي، دا جوتوي چې په ۳۲۲ نوو پيدا شوو غير نورمال او نيمګړو ماشومانو کې ۳۲ سلنه هغه ماشومان دي چې د هغوی ميندو د امېندوارۍ په وخت کې په ډېره زياته کچه شراب استعمال کړي دي.

د نړۍ يو ډېر مشهور ډاکټر چې ملوين کنزي "Malvin Kinzy" نومېږي، په واشنګټن کې د شراب څښلو پر ضد په يوه جوړه شوې نړيواله غونډه کې داسې وويل:

((د شرابو په لږه کچه کارول هم کېدای شي چې د زياتو مغزي زيانونو او ضايعاتو سبب شي. هغه کسان چې شراب څښي او له دې کار څخه خوند اخلي، په دې نه پوهېږي چې په حقيقت کې هغوی د خپلو مغزي ضايعاتو سبب کېږي. هغه کسان چې داسې کوي، په دې نه پوهېږي چې هغوی د خپلو مغزو حجرې نابودوي.))

نوموړی ډاکټر په دې اړه نورې خبرې هم لري، هغه وايي: ((په لوړه کچه د شرابو استعمال او څښل په وينه او رګونو کې داسې بدلونونه رامنځته کوي چې په پايله کې يې مغزي حجرې د اکسيجن له کمښت سره مخامخ کېږي او لږ وروسته بيخي له منځه ځي.

کله چې دغه حجرې له منځه لاړې شي، هغه کس له مغزي اختلالونو سره مخامخ کېږي. هغه وخت چې وینې ته شراب ورداخل شي، د وینې جریان له خنډ سره مخامخ کېږي، همدغه پېښه کله کله د وینې د پرنډ کېدو سبب کېږي.))

ډاکټران په دې باور دي چې د هغو ناروغیو درملنه ډېره گرانه او ستونزمنه ده چې لامل یې د ډېرو شرابو څښل وي. د شرابو او یا هر الکولي څښاك استعمال دغه ناوړه پایلې لري.

۱ـ د هاضمې په سیستم کې د سرطان مرضونه رامنځته کوي.

۲ـ د ینې یا ځیگر د سرطان سبب کېږي.

۳ـ د خېټې (معدې) پړسوب رامنځته کوي.

٤ـ د زړه ټکان زیاتوي او د زړه د حملو سبب کېږي.

٥ـ اعصاب سخت کمزوري کوي او حافظه له منځه وړي.

٦ـ د انسان عمر لنډوي.

۷ـ بې اشتهایي رامنځته کوي.

ډاکټر توماس هویتگر چې خپله هم یو حاذق طبیب دی، د الکولي مشروباتو په هکله وایي: ((شراب د انسان طبیعي عمر کموي. یو داسې کس چې په شرابو روږدی نه وي د منځني عمر اندازه یې څلوېښت کاله وي، خو د یو روږدي کس د منځني عمر اندازه ۲۸ یا ۳۰ کاله وي.))

د طب له نظره کله چې د انسان بدن ته شراب ورننوځي، نو د هغې ځانگړتیا له مخې چې شراب یې لري، د بدن لوندوالی جذبوي او د بدن په غړو کې یو لړ بدلونونه راولي. د دغو بدلونونو له امله د بدن یو شمېر غړي خپلې دندې په ښه توگه سرته نه شي رسولی. په دغه وخت کې د زړه ټکان زیاتېږي او د وینې فشار لوړېږي. په بدن کې دغه اختلال او بدلون د عقلي او عصبي گډوډیو سبب کېږي او په پای کې یوه غولوونکې مستي او لېونتوب رامنځته کېږي. همدغه غولوونکې مستي انسان د مرگ تر پولې هم رسوي.

څېړنو دا ښودلې ده چې د شرابو همېشه څښل د تریخي د کڅوړې اختلال، د معدې او کولمو ټپونه او نور بېلابېل رنځونه زېږوي.

له دې امله ټولو ته لازمه ده چې له دغو نشه يي توکو څخه ځانونه وساتي. له همدې امله ده چې د اسلام په مبارك دين کې هم د الکولي مشروباتو څښل منع شوي دي.

د متن لنډيز:

الکولي مشروبات او شراب هغه مخدره او روږدېدونکي مواد دي چې انسان ته بېلابېل ځاني او روحي زيانونه ور اړوي، لکه: لېونتوب، عصبي او رواني ناروغۍ، د معدې تپ، سرطانونه او نور بېلابېل رنځونه. د اسلام په سپېڅلي دين کې د الکولو او شرابو څښل حرام دي. نن ورځ ډاکټرانو هم د علمي څېړنو او برياوو (لاسته راوړنو) په رڼا کې دا جوته کړې ده چې د شرابو څښل د ځاني او مالي تاوانونو او بېلابېلو رنځونو د زېږېدلو په څنګ کې په اوسنۍ پېړۍ کې د جرمونو او جناياتو يو لوی لامل هم دی.

## فعاليتونه

١ـ زده‌کوونکي دې په خپل خپل وار د دې لوست يو يو پراګراف ولولي. نور ټولګيوال دې په پوره چوپتيا دغه برخې واوري. په پای کې دې دوه تنه زده‌کوونکي د دې لوست په عمومي ټکو خبرې وکړي.

٢ـ درې تنه زده‌کوونکي دې په دغو موضوعاتو خپلو ټولګيوالو ته لنډې لنډې خبرې وکړي:

- د شرابو استعمال او د عمر له منځني حد سره يې اړيکې
- د شرابو ډېر مصرف کوم رنځونه زېږوي؟
- شراب او الکولي مشروبات ټولنې ته کوم لوی لوی زيانونه رسوي؟

گرامري برخه

۳ـ زده‌کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي.

الف: لومړۍ ډله دې د دغو کلمو مترادف پیدا کړي:

ډول

درملنه

ناروغي

ټول

دندې

ب: دویمه ډله دې د لاندې کلمو متضاد پیدا کړي:

ناوړه

ستر

زیان

ورځ

ماشومان

بریا

٤ـ دغه لغتونه په لاندې تشو ځایونو کې په سمه توګه ولیکئ. جملې په خپله کتابچه کې بشپړې کړئ:

جرم او جنایت، سرطان، عمر، حجرې.

- د زیاتو شرابو استعمال د انسان د طبیعي .............. په وړاندې مبارزه ده.
- د څېړنو په رڼا کې په ټولنه کې د الکولي مشروباتو استعمال په ټولنه کې د .............. کچه زیاتوي.
- د شرابو استعمال د ینې یا ځیګر د .............. سبب کېږي.
- د شرابو د څښلو له امله په لومړي سر کې د مغز .............. ته اکسیجن نه رسېږي او بیا له منځه ځي.

په خپل شاوخوا کې د یو داسې چا د ژوند د ستونزو یا بدمرغیو په اړه یو یو مخ ولیکئ چې د مخدره موادو د استعمال له امله ورته پیدا شوي وي، کېدای شي د نسوارو، سګرټو، شرابو، الکولو، پوډرو او نورو په اړه هم وي.

ناامیدۍ کې امیدونه راسره وي
په تیاره کې مشالونه ښکلي ښکاري

چې په سیوري پسې ځغلي ای طاهره
سر ته نه رسي د هغو مرادونه
((طاهر کلاچوي))

هر چه غمونه د دنیا ډېر کړي
د عقبا غم به له دله هېر کړي

د حسد اور په طاعت لګېږي
غریب حاسد به تر عمل تېر کړي
(( پیرمحمد کاکړ))



# د شعر په اړه څرگندوني

ـ آيا تاسو خپله کله کوم شعر ليکلی دی؟
ـ د کوم شاعر شعر مو خوښېږي او ولې مو خوښېږي؟
ـ آيا کوم شعر يا د شعر کومه برخه مو ياده ده؟

د شعر په اړه خبرې او دا چې کوم شعر د يو چا خوښېږي او ولې يې خوښېږي؟ دا يو ډېر په زړه پورې بحث دی. د دې لپاره لازمه ده چې موږ په دې پوه شو چې شعر څه شی دی؟ څه ځانگړنې لري، کوم ډول شعرونه غوره شعرونه دي او ولې غوره دي؟

په دې لوست کې په همدې ښکلې موضوع له تاسو سره خبرې اترې کوو.

د شعر په اړه او د شعر د تعریف، پېژندلو او ځانګړنو په اړه ډېرې خبرې شوې او کېږي. په عمومي توګه دوه نظره د پام وړ دي. هغه کسان چې د شعر ظاهري اړخ یې په نظر کې وي، هغوی شعر موزون او مقفی (قافیه لرونکی) بیان بولي. د دوی په نظر وزن او قافیه د شعر نه جلا کېدونکې برخې دي. البته په همدې ډله کې هم ځینې کسان بیا قافیه د شعر ذاتي ځانګړنه نه، بلکې له لازمو یا فروعاتو یې ګڼي.

یو بل نظر چې زیاتره د شعر په اړه منطقي او فلسفي نظر دی، د شعر جوهر د هغه په ظاهري څرګند اړخ کې نه ویني، بلکې د هغه په منځپانګه او هنري اړخ کې یې لټوي چې هغه د خیال، تصویر او د شعر د نورو ځانګړنو غوښتنه کوي. له همدې امله زیاترو کسانو شعر هغه کلام ګڼلی دی چې وزن او تخیل ولري. د شعر په اړه همدغه دویم نظر تر ننه پورې د ډېرو د منلو وړ دی.

د نړۍ شعر پېژندونکي او پوهان، په دې اړه هم په دوو ډلو وېشل کېږي چې د شعر د موضوع، محتوا یا منځپانګې په اړه یې لري. د یو شمېر په نظر د شعر اصلي موخه تربیتي او روزنیزه ده. د هغوی په نظر د شاعر دنده دا ده چې د ټولنې د یو آګاه (باخبره) ژمن او رسالت لرونکي غړي په توګه د انسانانو د لارښوونې او روزنې په لاره کې اغېزمن کار وکړي. د دوی په نظر دغه اړخ له ښکلاییز او هنري اړخ څخه زیات مهم دی.

بله ډله پوهان او شعر پېژندونکي بیا په دې نظر دي چې د شعر اصلي اړخ یا جوهر د هغه د ښکلا او هنر اړخ دی. دوی وایي: د شعر دنده دا نه ده چې لارښوونه او تبلیغ وکړي، بلکې مهمه ځانګړنه یې باید دا وي چې په انسانانو کې د ښکلا خوښوونې احساس پیاوړی کړي.

ځیني شعر پېژندونکي، کره کتونکي او پوهان بیا منځنۍ لاره غوره ګڼي او وایي چې شعر باید هم د یو عالي او پیاوړي انساني پیغام او عالي متن او محتوا لرونکی وي او هم د ښایست او ښکلا هنګامې راوهڅوي. رنګینۍ ولري او د موسیقۍ په څېر ولولې راوپاروي.

په پخوانیو شعري یا منظومو چوکاټونو کې چې موږ ورته د کلاسیک شعر چوکاټونه وایو، قافیه، د شعر چوکاټ او ځانګړی وزن د زیاتې پاملرنې وړ دی. د نظمونو یا شعرونو په دغو چوکاټونو کې غزله، قصیده، مثنوي، څلوریزه او نور د یادولو وړ دي.

په نوې شاعرۍ کې د پخوانیو شعري قالبونو د پاللو په څنګ کې د سپین او آزاد شعر خوا ته هم پوره پام اوښتی دی. آزاد شعر هغه شعر دی چې قافیه پکې حتمي نه ده، وزن یې په عمومي

ډول د یو شعر په کلیت کې په پام کې نیول کېږي او وزن یې د کومې ټاکلې بېلګې تابع نه دی. کرښې یې لنډې او اوږدې دي. په آزاد شعر کې وزن د یو ډول طبیعي آهنګ او موسیقۍ تابع وي. په اروپا کې هم دغه شعر په ۱۹مه پېړۍ کې خپل اوج ته ورسېد. دا په حقیقت کې آزادو شعري قالبونو ته د نوو نظرونو او افکارو ننوتل دي. مهمه خبره دا ده چې آزاد شعر نه یوازې دا چې له کلاسیکو شعرونو او نظمونو سره د چوکاټ له نظره توپیر لري، د مضمون او محتوا له پلوه هم ورسره باید توپیر ولري. په آزادو شعرونو کې باید د شعر مضمون هم د نوي دوران مضمون وي.

سپین شعر بیا هغه شعر ته ویل کېږي چې قافیه ونه لري. په اروپایي شعرونو کې زیاتره کلاسیک روایتي او کیسه یي شعرونه په همدغه قالب کې وو چې د بیتونو وزن او اندازه یې سره برابره وه خو د قافیې له قید څخه آزاد وو.

د شعر ځینې ځانګړنې:

لکه چې ومو ویل، د شعر د تعریف، پېژندنې او ځانګړنو په اړه بېلابېل نظرونه شته، په دې اړه د ځینو شاعرانو او شعر پېژندونکو نظرونو ته پام لازم دی:

ـ ((شعر په ولوله ییز او موزونه (آهنګواله) ژبه د بشري فکر ځانګړې او هنري څرګندونه ده، له دې امله به موږ شعر موزیکال فکر وګڼو.))

ـ ((په شعر کې د الفاظو معنا له هغه څه نه چې په قاموسونو کې یې راوړې، پراخه ده او د بیان قدرت یې زیات دی.))

ـ ((شعر باید د ژوند د اړتیاوو او معیارونو تابع نه کړو. د ګلاب ګل څوک د دې لپاره نه خوښوي چې د هغه اوبه د سترګو د درمل په توګه استعمالېدای شي، بلکې د دې لپاره یې خوښوي چې ګلاب ښکلی دی او ښکلا په خپله یو مستقل ارزښت دی.))

ـ ((د شعر هدف په ملت کې د روښنایۍ خپرونه ده.))

د شعر په اړه په تعریفونو کې په ځانګړي ډول دغه ګډ ټکي د پام وړ دي:

تخیل، جذبات (یا احساسات)، ښکلا، عواطف، خوند، مفکوره (په بله معنا د واقعیت انګازه) همدغه ټکي د شعریت معیارونه هم ګڼل کېدای شي.

((په شعر کې یو ډول مفکوره شته، خو یوازې د مفکورې شته والی د شعریت دلیل نه ګڼل کېږي، بلکې مفکوره باید په شاعرانه بڼه راوځلېږي.))

کاندید آکاډمیسین محمد صدیق روهي د شعر د عمده او اساسي توکو یا ځانګړنو په اړه لیکي:

((شعر له څلورو ضروري توکو څخه جوړ دی: مفکوره، تخیل، احساس (عاطفه) او وزن. د دې خبرې ضمني معنا دا ده چې هر نظم شعر نه دی، په شعر کې د مفکورې شته والی حتمي دی، ځکه چې بې مفهومه شعر، شعر نه دی، لیکن په شعر کې باید مفکوره شاعرانه بڼه ولري. له دغو یادونو څخه وروسته کولی شو چې د شعر لپاره دا لاندې تعریف پیشنهاد کړو:

((شعر په وزن لرونکې ژبې سره د مفکورې او تخیل عاطفي ترکیب ته ویل کېږي)).

د مفکورې او وزن په اړه خو خبره څرګنده ده، په ښه شعر کې د تخیل په اړه باید وویل شي چې: په شعر، ادب اوټولو هنرونو کې تخیل ځانګړی ارزښت لري. تخیل په شعر کې د تشبیهاتو، استعارو او څېرو په بڼه راڅرګندېږي. احساس او عاطفه هم په شعر کې له ضروري توکو څخه ده. په شعر کې احساس یا عاطفه ضروري شرط دی. که شاعر درد، هیله، احساس، اندېښنه، قهر او تاثر ونه لري، نو لوستونکی او اورېدونکی له داسې شعر څخه خوند نه شي اخیستلی. د لیو تولستوی په قول: ((د شعر اصلي وظیفه دا ده چې مقابل لوري ته احساس ورولېږدوي.))

یو بل لیکوال وایي: ((په هنر کې قضاوت، مفکوره او حقیقت په عاطفي بڼه راڅرګندېږي.))

استاد روهي له دغو بحثونو څخه نتیجه اخلي او لیکي:

شعر دوه ډوله ارزښتونه لري. ذاتي (یا اصلي او په خپله په شعر پورې مربوط) او بهرني (چې د شعر لپاره دغه ارزښتونه هم مهم دي خو د شعر خپل جز نه دی).

د شعر بهرني ارزښتونه دین، اخلاقو، علم، فلسفې، سیاست یا ایډیالوجۍ (مفکورې) ته خدمت کوي. متعهد شاعران د شعر بهرنیو ارزښتونو ته زیات اهمیت ورکوي.

متعهد شعر د یوې ټاکلې برخې، سیاسي ډلې یا ایډیالوجۍ مرام ته وقف شوی دی او له دې امله د ټولو لپاره د خوند او لذت منبع نه ګرځي، خو همیشنی (تلپاتې) شعر د ټولو انسانانو په هکله ویل کېږي او د شعر له ذاتي ارزښتونو څخه کار اخلي. په دغه ډول شعر کې هم مفکوره د بشریت لپاره له دایمي ارزښتونو سره اړه لري. د زمانې په اوږدو کې هر نسل ته احساس او عواطف ور انتقالوي. عشق، ښکلا، سوله او دوستي، ایثار، زړه سوی، ګډ ارمانونه او داسې نور همېشني ارزښتونه د شعر بڼ تازه او سمسور ساتي. د شعر ذاتي ارزښتونه: ښکلا، تخیل، تصویر، هنري ژبه، آهنګ

(وزن)، احساس او جذبات دي. بهرني ارزښتونه باید شاعرانه شي. له هغې وروسته پرې د شعر نوم ایښودل کېدای شي.

د متن لنډیز:
شعر د ادبیاتو یوه مهمه برخه ده. شعر له څلورو ضروري توکو څخه جوړ دی: مفکوره، تخیل، احساس (عاطفه) او وزن. د شعر په اړه بېلابېل تعریفونه شوي دي.
موږ کولی شو، د شعر یو ښه تعریف په دې ډول وکړو:
((شعر په وزن لرونکې ژبې سره د مفکورې او تخیل عاطفي ترکیب دی.))
د شعر په ذاتي او اصلي ځانګړتیاوو کې: ښکلا، تخیل، تصویر، هنري ژبه، وزن احساسات او جذبات د یادولو وړ دي. د شعر بهرني ارزښتونه په اخلاقو، علم، فلسفې، سیاست، ایډیالوجی (مفکورې) او نورو پورې اړه پیدا کوي.
همېشنی او تلپاتې شعر د ټولو انسانانو لپاره ویل کېږي او له همېشنیو ارزښتونو سره یې کار وي. نه له موقتي او سرسري ارزښتونو سره چې یوازې په یوه ډله خلکو پورې اړه ولري.




**د شعر جوهر:** له دې څخه موخه د شعر اصلي اړخ یا اصلي ټولګه ده. د شعر جوهر د شعر د هغو توکو ټولګه ده چې بې له هغې شعر، د شعر په نوم نه شو یادولی.

**لیو تولستوی:** د روسیې یو نومیالی لیکوال دی چې په نولسمه پېړۍ کې یې په روسیه او ټوله نړۍ کې د ستر لیکوال په توګه شهرت درلود. ((جګړه او سوله)) یې ډېر مشهور ناول یا رومان دی.



## فعالیتونه

۱ـ د لوست یو یو پراګراف دې یو یو زده‌کوونکی ولولي او نور دې غوږ ورته ونیسي.

۲ـ زده‌کوونکي دې په څلور ډلو وویشل شي. یوه ډله دې د دې لوست د یو لغت یا اصطلاح په اړه له بلې ډلې پوښتنه کوي او هغه ډله به ځواب ورکوي، بیا به په سرچپه توګه همدغه کار تکرارېږي. ځوابونه دې لنډ لنډ وي.

۳ـ څلور تنه زده‌کوونکي دې د یوې یوې ډلې په استازیتوب پر دغو موضوعاتو لنډې لنډې خبرې وکړي:

- هغه کسان چې شعر ته په ظاهري توګه ګوري، د شعر په اړه څه نظر لري؟
- د شعر جوهر څه شی دی؟
- د شعر ذاتي او اصلي ځانګړتیاوې
- د شعر بهرني ارزښتونه

٤ـ زده‌کوونکي دې په ټولګي کې یوه کوچنۍ مشاعره جوړه کړي. د هر چا چې کوم شعر خوښ وي او هغه یې په یادو یاد وي، ټولګیوالو ته دې یې واوروي، که یوازې یو، یا څو بیته وي، هم سمه ده. بیا دې یو بل ټولګیوال د هغه شعر په ارزښت، معنا او ښکلا یو څه ووایي، دا کار دې همداسې دوام وکړي او ټول زده‌کوونکي دې یا په شعر لوستلو او یا په خبرو کې ونډه واخلي.



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د خپلې خوښې یو ښه شعر انتخاب کړي، هغه دې په یوه پاڼه کې ولیکي او ترې لاندې دې دا هم ولیکي چې ولې یې دا شعر انتخاب کړی او شعر د ده په نظر کومې ځانګړتیاوې لري؟ په دې اړه دې د همدغه لوست متن په پام کې ولري.

# د ماین، ناچاودو توکو او معلولیت روانې اغېزې








په تېرو ټولګیو کې تاسو د ماینونو او ناچاودو توکو په اړه ډېر مطالب او لارښوونې لوستې دي. نږدې په هر ټولګي کې مو هغه معلومات ترلاسه کړي دي چې څنګه له ناچاودو توکو ځانونه وساتو، څنګه پرې خپله کورنۍ، دوستان او هېوادوال ویوهوو او په دې برخه کې څنګه له ټپیانو سره لومړنۍ مرستې وکړو؟

په دې لوست کې دې خبرې ته تم کېږو چې له ماین او ناچاودو توکو څخه ډېرې ځانګړې، کورنۍ او عمومي ټولنیزې ستونزې هم راپیدا کېږي. دا په حقیقت کې یو ډول رواني ستونزې دي چې زموږ ټولنه او په تېره بیا ویښ او بیدار ځوانان باید ورته ځانونه چمتو کړي، ځان هم پرې پوه کړي، خپله کورنۍ او ټولنه هم. په دې لوست کې پر همدغه موضوع له تاسو سره خبرې لرو.

په بېلا بېلو جنګونو کې چې په جلا جلا هېوادونو کې ترسره شوي دي، له ماينونو هم د خپلو اهدافو لپاره ګټه اخيستل شوې ده. په افغانستان کې هم په بېلا بېلو وختونو کې ماينونه کارول شوي او زموږ يو شمېر افغانان يې د غم پر ټغر کښېنولي دي.

دا چې د ماينونو له کبله يو شمېر افغانان ټپيان شوي او بيا معلول شوي دي، دغه معلوليت د ښکاره ستونزو او تکليفونو تر څنګ، رواني ستونزې او ناروغۍ هم له ځانه سره لري. که پوره پام وکړو له څرګندو نښو نښانو او ستونزو څخه دغه پټ رنځ چې رواني ناروغي يې بايد وبولو، هم د معلول کس لپاره او هم د ټولنې لپاره ډېر زيات خطر لري. دا يوه کورنۍ او بشپړه ټولنه له رواني او ټولنيزو ستونزو سره مخامخ کولی شي. له همدې امله دې ستونزې ته د يوې درنې ټولنيزې ستونزې په توګه بايد غور وکړو.

ستونزه په پيل کې له دې څخه راولاړېږي چې:

۱ـ د ماينونو او ناچاودو توکو (او يا په عمومي توګه د جګړو له امله) يو څوک ټپي شي. لاس، پښه، سترګه يا د بدن کوم بل غړی له لاسه ورکړي. د بدن هېڅ غړی د انسان په ژوند کې اضافي نه دی او هر يو يې په خپل خپل ځای کې ضروري دی. کله چې يو څوک معلول شو، هغه سړی د عادي ژوند لپاره خپلې هيلې له لاسه ورکړي.

۲ـ ښايي دغه معلول کس د خپلې کورنۍ له خوا هم قبول نه شي.

۳ـ ښايي کله کله په شاوخوا چاپېريال او ټولنه کې هم داسې ناوړه کسان پيدا شي چې معلول کس ته په سپکه سترګه وګوري.

٤ـ په داسې حالاتو کې که معلول انسان له ټولنې څخه ځان ګوښه کړي، يا خپل مهارتونه او وړتياوې له لاسه ورکړي، نو ورو ورو له رواني پلوه په يو ناروغ انسان بدلېږي چې هم ځان او هم ټولنې ته زيان رسوي.

موږ ټولو ته (د معلول کس په ګډون) لازمه ده چې د دې ستونزې د مخنيوي لپاره په ټولنه کې د معلولينو د ښه جذب او په عمومي توګه د يوې سالمې ټولنې د جوړېدو لپاره دغو ټکو ته پام وکړو:

۱ـ معلول کس باید په هېڅ ډول خپل ځان د ټولنې نیمگړې برخه ونه گڼي. هغه باید په رواني ډول ځان داسې وگڼي چې هېڅ نیمگړتیا او عیب نه لري. هغه معیوب نه دی، معلول دی او په ټولنه کې خپل ځای، خپل قدر او خپل درنښت لري.

۲ـ د معلول کس کورنۍ باید په دې برخه کې زیات پام وکړي، که هغوی د خپلې کورنۍ معلول غړي ته په خپله غېږه کې لکه د پخوا په څېر په مینه او محبت ځای ورکړي، ټوله کورنۍ ورسره نېکمرغه پاتې کېږي.

۳ـ موږ باید په خپلو خبرو اترو کې، له معلولینو سره په چلند کې، په لیکنو او ویناوو کې معلولینو ته د معیوب او نیمگړي خطاب ونه کړو. هغوی ته داسې کلمې ونه کاروو چې د توهین، ملنډو او تحقیر څرک ترې ولگي. دا به په هېڅ ډول غوره نه وي چې موږ هغوی ته د کاڼه، ړانده، گوډ، شل، لیوني او نورو خطاب وکړو او دغه نومونه داسې وکاروو چې د توهین او تحقیر بوی ترې راپورته شي. د دې په ځای باید هغوی داسې معلولین وگڼو چې د بېلابېلو علتونو له امله له دغې ستونزې سره مخامخ شوي او که موږ هر یو له داسې پېښو سره مخامخ شوي وای، په همدغه حالت کې به وای.

٤ـ معلولین باید د ټولنې د روغو کسانو په څېر د ټولو حقوقو لرونکي وي. هغه کسان یې چې د زیات معلولیت له امله د کار جوگه نه وي، باید د ژوند ټولې اسانتیاوې ورته برابرې شي. هغوی چې د کار جوگه وي، په هره برخه کې ورته د کار لارې چارې برابرې شي. په دې توگه به هغوی د عادي انسانانو په توگه ځان د ټولنې داسې مهمه برخه وبولي، لکه نور ټول چې دي.

٥ـ معلولو ماشومانو، ځوانانو او لویانو ته باید د زده کړې امکانات هم برابر شي. دوی کولی شي د عمومي زده کړو په مؤسسو کې گډون وکړي، باید ټول همزولي ورته د وروڼو او

خویندو په توګه له ځانه سره په برابره بڼه وګوري او زیات درنښت یې وکړي چې له معلولیت او ستونزو سره سره له دوی سره په څنګ کې ناست دي او زده کړه کوي چې په راتلونکي کې ترې د ټولنې د پرمختګ او سوکالۍ لپاره ګټه واخیستله شي. که د دې امکان نه وي چې ځینې کسان یې د زده کړو په عمومي مرکزونو کې زده کړو ته دوام ورکړي، باید بېلابېل ځانګړي ښوونځي ورته جوړ شي.

د اسلام مبارک دین او دغه راز نړیوالو بېلابېلو تړونونو د معلولینو د حقونو په برخه کې ډېر زیات ټینګار کړی دی. معلولین یې د ټولنې هغه برخه ګڼلې ده چې هم ورسره باید مرسته وشي، پالنه یې وشي او هم ورته د ژوند په ټولو چارو کې له نورو انسانانو سره یو ځای د ګډ ژوند او ګډ کار لارې چارې برابرې کړي.

که موږ داسې وکړل، نو له رواني او ټولنیز پلوه به مو مهم کار ته پام کړی وي. دا د ټولو افغانانو او په تېره بیا د ټولو ځوانانو دنده ده چې معلولینو ته درناوی وکړي او هغوی ټول په هره برخه کې د خپل ځان سیال او له ځانه سره برابر او د مساوي حقونو لرونکي وګڼي.

د متن لنډیز:

د ماینونو او ناچاودو توکو له امله زموږ زیات شمېر هېوادوال وژل شوي، ټپیان شوي او معلول شوي دي. دغه معلول افغانان له یو لړ ځانګړو کورنیو او ټولنیزو او رواني ستونزو سره هم مخامخ کېږي. موږ باید خپلې دغه خویندې او خپل وروڼه د خپلې ټولنې پر اوږو بار ونه ګڼو، باید درناوی ورته ولرو او هغوی په ټولو برخو کې له ځان سره د برابرو حقوقو او وجایبو لرونکي وشمېرو، نه نیمګړي کسان.

له معلولینو سره غوره چلند هغوی له رواني پلوه پیاوړي کوي او په ټولنه کې د ګټورو او اغېزمنو غړو په توګه خپله دنده ترسره کوي.



## فعالیتونه

۱ـ زده‌کوونکي دې په خپل خپل وار د دې متن یو یو پراګراف ولولي. نور زده‌کوونکي دې ورته غوږ وي. د پراګراف له لوستلو وروسته دې د هغه په څنګ کې ناست ټولګیوال د دغه پراګراف (صفتونه) په نښه کړي.

۲ـ پنځه تنه زده‌کوونکي دې په خپله خوښه په خپل کور، دوستانو او یا په خپل شاوخوا کې د کوم معلول په اړه خبرې وکړي، دا چې څنګه معلول شوی او اوسنی حالت یې څنګه دی؟

۳ـ دغه متن د (ی) ګانو له نظر کې نیولو پرته لیکل شوی دی. تاسو یې په خپلو کتابچو کې ولیکئ او د (ی) ګانو سمه کارونه په پام کې ولرئ:

((موږ ته لازمه ده چی خپلو معلولو هیوادوالو ته د ژوند په هره برخه کی د خپلو سیالو او د مساوی حقونو لرونکو هیوادوالو په سترګه وګورو. له دوی سره مرسته زموږ دنده ده. که داسی ونه کړو، هغوی له ډېرو روانی ستونزو او ناروغی سره مخامخ کیږی. راځی چی دوی له یاده ونه باسو. دوی خپلی خویندی او ورونه وګڼو او ټولنی ته یی د غوره انسانانو او غړو په توګه روزنی او پالنی ته پرله پسی پام وکړو.))



## کورنۍ دنده

هر زده‌کوونکی دې په خپل کلي کور کې د یو معلول کس په زړه پورې کیسه ولیکي، څنګه معلول شوی؟ د خلکو چلند ورسره څه ډول دی؟ اوس څه کوي؟

د دغې لیکنې (کیسې) د متن ټولې (ی) ګانې باید سمې لیکل شوې وي او که ناسمې وي، سبا ته یې په ټولګي کې سمې کړي.

په دې کیسه کې دې دغه ټکي په پام کې ونیسي:
۱ـ د ټولنې روان واقعیتونه دې په پام کې ونیسي.
۲ـ نثر دې هنري او ادبي ځانګړنې ولري، یعنې نثر دې خوږ او روان وي.

ځه غواړو؟

چې وړي تیاره د جهالت هغه سحر غواړو موږ
وطن د علم په رڼا کې منور غواړو موږ
چې په وطن کې یې خبرې د ښېګڼې وشي
هسې مامور هسې آمر، هسې عسکر غواړو موږ
نه چې سبب د زرد رویۍ شي د وطن لپاره
چې خوار غریب په ګېډه موړ کا هغه زر غواړو موږ
په فېشنو او عبثیاتو پسې مه ځه ګوره
ای د مکتب ځلمیه تا ته لوړ هنر غواړو موږ
چې وي صادق او په ایمان سره خادم شي د قام
داسې ادیب داسې شاعر داسې رهبر غواړو موږ
((قیام الدین خادم))

یوه بیباکي یوه نړۍ هڅه او هاند له منځه وړي.
(( لویي پاستور))

# ادبي کره کتنه



په تېرو ټولګيو کې تاسو د ادب او ادب پوهنې په اړه یو لړ معلومات ترلاسه کړي دي. د ادب څېړلو، ارزولو، کره کولو او تاریخي مطالعې ته ادبپوهنه وايي. ادب پوهنه درې عمده څانګې لري: د ادب تیوري، ادبي کره کتنه (یا ادبي نقد) او د ادب تاریخ.

ادبي کره کتنه د ادبپوهنې یوه مهمه څانګه ده، د ادبیاتو د ودې او پرمختګ په بهیر کې ادبي نقد یا ادبي کره کتنه ځانګړی ځای لري. په دې لوست کې به ولولو چې ادبي کره کتنه څه شی ده؟ په ادبي هلو ځلو کې یې ارزښت څه دی؟ کوم کوم معیارونه لري او کوم کوم ډولونه یې مهم دي؟

د ادبي نقد یا کره کتنې په هکله ډېر تعریفونه وړاندې شوي دي، خو د پېژندنې تر ټولو مهمې برخې یې دا دي:

ادبي کره کتنه د ادبي آثارو د هر اړخیزې ارزونې په معنا ده چې د دغو آثارو ښکلاوې، ارزښتونه او نیمګړتیاوې په نښه کوي. د ادبي کره کتنې له لارې لوستونکي پوهېږي چې کوم ادبي اثر عالي، ځلند او پیاوړی، کوم منځنی او کوم یو کمزوری دی؟

د ادبي کره کتنې له لارې لوستونکي او د ادبي آثارو لېوال او مینه وال د ادبي اثارو له ارزښتونو سره اشنا کېږي. له همدې امله څېړونکي په دې نظر دي چې د ادبي نقاد کار دادی چې د ادبي اثر د لیکوال او عادي لوستونکي ترمنځ وسیله شي. کره کتونکی د لیکوال او لوستونکي ترمنځ د اړیکو پل دی، د اړیکو مزی دی او څومره چې دا مزی پیاوړی وي، د یو ملت د ادبي یون په پیاوړتیا او ښکلا کې خپل اغېز زیاتوي. د کره کتونکي دنده دا ده چې لوستونکو ته څرګنده کړي چې په دې یا هغه ادبي اثر کې مهم ارزښتونه، لوړې ښکلاوې او پیاوړتیاوې کومې کومې دي، یا دغه او هغه اثر څه کمزورۍ او نیمګړتیاوې لري؟ که دغه واسطه، یا د اړیکو پل او مزی نه وي، ښایي یو غوره اثر خلک ښه ونه پېژني او یا یې له پیاوړو اړخونو، ځلندو برخو او ښکلاوو ځخه ناخبره پاتې شي. دغه راز کېدای شي چې مینه وال د یو ادبي اثر له نیمګړو خواوو او کمزوریو هم پوره خبر نه شي. له دې لارې د ادبي آثارو او لیکنو اصلي او ریښتیني ارزښتونه رابرسېره کېږي.

د یو دقیق کره کتونکي کار دا نه دی چې د یو ادبي اثر په اړه د ښه یا بد حکم وکړي، یعنې یو اثر په بشپړه توګه (ښه) یا (بد) وګڼي. د هغه موخه باید دا وي چې د یو اثر هر اړخېزه ارزونه وکړي، ټول اړخونه یې راوسپړي، ځلاوې او نیمګړتیاوې یې یادې کړي. سره له دې چې نقاد یا کره کتونکی هم ښایي کله کله د خپلو ځانګړو احساساتو، نظرونو او ذوقونو له مخې د ادبي اثر په اړه شخصي ټکي هم ورداخل کړي، خو مهمه خبره دا ده چې دی وکولی شي خپل دغه احساسات داسې مهار کړي چې د یو ادبي اثر اساسي ارزښتونه ترې پټ پاتې نه شي.

ادبي کره کتونکی د یو ادبي اثر د کره کولو او نقد په وخت کې باید د یو ځانګړي ادبي اثر د لیکوال د وخت حالات، شرایط او امکانات له یوې خوا په نظر کې ولري، له بلې خوا باید دې ته پام وکړي چې د هغو شرایطو په رڼا کې د هغه وخت عمومي ادبي وضعیت څه ډول و؟ آیا لیکوال هغه څه په ښه توګه ویلي دي چې غوښتل یې ویې وایي؟ که داسې نه وي او منقد او کره کتونکی د ادبي اثارو ارزونه یوازې د خپل نظر او فکر له مخې وکړي، کره کتنه به یې بریالۍ نه وي.

لکه چې ومو ویل ادبي نقد د ادبي آثارو ارزونه ده او دا خبره په حقیقت کې له یو ډول ((قضاوت)) سره ملګرې ده. د دې خبرې معنا دا ده چې ادبي کره کتنه د آدبي اثارو په اړه ((قضاوت)) دی او له همدې امله لازمه ده چې کره کتونکی د ادبي آثارو په هکله د رښتیني معرفت او پوهنې لرونکی وي. هغه باید یو لړ داسې اصول او معیارونه خپلې مخې ته ایښي وي چې د هغو له مخې وتوانېږي، په غوره او دقیقه توګه د کره کتنې په کار کې بری ترلاسه کړي. له همدې امله یې دغو ټکو ته پام اړین دی:

۱ــ د کره کتونکي موخه دا نه ده چې یو نوی شی رامنځته کړي، بلکې هغه څه چې موجود دي او لیکل شوي دي، تحلیل او توصیف یې کړي، بېلابېل اړخونه یې وڅېړي او د بېلابېلو برخو اړیکې یې وارزوي، له همدې امله هغه باید د یو منځګړي او درېمګړي کس په توګه ادبي اثر وارزوي.

۲ــ ادبي کره کتونکی د دې په څنګ کې چې له شعر او داستان او په عمومي توګه له ادبیاتو سره یې مخه ده، له ډولونو څخه په یو ډول یې له ښکلا پوهنې، ټولنپوهنې او ارواپوهنې سره هم اړیکې باید له پامه ونه غورځوو. په دغو برخو کې هم کره کتونکي ته د تجربې لرل لازمي دي.

۳ــ کره کتنه د ادبي بهیر په وده او بشپړتیا کې اساسي ونډه لري. دا یوه ستره موخه ده. نقاد د یوې داسې سترې دندې لرونکی دی. له همدې امله باید ادبي کره کتونکی له سرسري ټکو، لکه شخصي لېوالتیا یا کینې څخه بهر په عمومي توګه د یو ولس د ادبي بهیر په پیاوړتیا کې خپله ونډه جوته کړي او سره له دې چې د یو ځانګړي ادبي اثر په اړه قضاوت

کوي، د دغه عمومي ادبي بهير بشپړتیا، ښکلا او ځلا ته یې پام وي.

ځینو څېړونکو د کره کتنې لپاره درې شرطونه لازم ګڼلي دي:

۱ـ ذوق، ۲ـ پراخ ادبي معلومات او اطلاعات، ۳ـ تجربه او زیات تمرین.

۱ـ ادبي ذوق: د ادبي اثارو د پیاوړتیاوو او نیمګړتیاوو د څرګندولو غوره عامل دی. ذوق له دوو برخو جوړ دی، فطري استعداد او بل ادبي او هنري تربیت چې اکتسابي (زده کېدونکې) بڼه لري.

۲ـ هغه څوک چې ښه ادبي ذوق ولري، که د زیاتې مطالعې، لوستنې او څېړنې ستونزې پر ځان ومني، کولی شي چې د ادبي آثارو غوره ارزوونکی او کره کتونکی شي. د خپلو ادبیاتو او د نړۍ د ادبیاتو په اړه پراخه او ژوره مطالعه، د ادبیاتو په اړه د نورو آثارو لوستل او عمومي معلومات ترلاسه کول، د یوه کره کتونکي کار پیاوړی کوي.

۳ـ کره کتونکي ته لازمه ده چې د کره کتنې کار ته د یو عادي او سرسري کار په سترګه ونه ګوري، پرله پسې تجربې ترلاسه کړي، بیا بیا تمرین وکړي او وتوانېږي چې یو ښه کره کتونکی شي.

د ادبي کره کتنې د ډولونو په اړه هم ډېرې خبرې شوې دي. ځینو څېړونکو ورته بېلابېل ډولونه په نظر کې نیولي دي چې یو څو یې یادوو:

سنتي نقد، تاریخي نقد، فلسفي نقد، فورمولیستي (شکلي) نقد، ارواپوهنیز نقد، اجتماعي نقد او نور...

د متن لنډیز:

ادبي کره کتنه یا ادبي نقد د ادبپوهنې یوه مهمه برخه ده. کره کتنه د ادبي آثارو د ارزښتونو د راځلونو څرګندونه کوي. ادبي کره کتنه د ادبي آثارو د هر اړخیزې ارزونې په معنا ده. موږ کولی شو چې د کره کتنې په وسیله لوستونکي او د ادبي لیکنو مینه وال په دې وپوهوو چې کوم اثر ډېر لوړ او پیاوړی، کوم یې د منځني حد او کوم یې کمزوری

دی؟ ادبي نقاد او کره کتونکی په حقیقت کې د ادبي اثر د لیکوال او د اثر د لوستونکي ترمنځ د اړیکو پل یا د اړیکو مزی دی.

څېړونکو د کره کتنې یا کره کتونکي لپاره درې شرطه لازم ګڼلي دي:

۱ـ ذوق، ۲ـ پراخ ادبي معلومات او اطلاعات، ۳ـ تجربه او زیات تمرین.

غوره کره کتونکی د ټولنې د ادبي بهیر په وده، ښکلا او بشپړتیا کې ستره ونډه لري.

له کره کتنې پرته د یو ولس ادبیات لازمه وده نه شي کولی.

## فعالیتونه

۱ـ زده‌کوونکي دې یو ځل بیا ټول متن په چوپه خوله په دقت سره ولولي او دغو پوښتنو ته دې ځواب ووایي:

- ادبي کره کتنه څه ته وایي؟
- ادبي کره کتنه د اثارو د لیکوال او لوستونکو ترمنځ د څه شي حیثیت لري؟
- د ادبي کره کتنې هدفونه کوم کوم دي؟
- د ادبي اثر د ارزولو په وخت کې کومو کومو ټکو ته پاملرنه په کار ده؟

۲ـ څو تنه زده‌کوونکي دې په دغو موضوعګانو (د خپلو نورو معلوماتو او د ادبي کتابونو او لیکنو د مطالعې له مخې) پنځه پنځه دقیقې خبرې وکړي.

- د کوم پښتو لیکوال لیکنې مو خوښې دي او ولې؟
- ایا په کوم شعر یا داستان مو نقد لوستی دی؟ که مو لوستی وي، آیا خوښ شوی مو دی که نه؟ د خوښېدلو یا نه خوښېدلو علتونه یې په لنډه توګه خپلو ټولګیوالو ته وواياست.
- کره کتونکی باید څه وکړي چې کره کتنه یې ښه او پخه راشي؟
- کره کتنه د ټولنې د ادبي بهیر په وده او پرمختګ کې کومه ونډه لري؟



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د دولسم ټولګي د پښتو لوست د کتاب کوم شعر یا داستان په غور ولولي او یوه دوه مخیزه کره کتنه دې پرې ولیکي. معرفي دې يې کړي او پياوړې او نيمګړې اړخونه دې يې په ګوته کړي.

د کره کتونکي کار دا دی چې د يو کتاب د ارزښتونو په هکله خبرې وکړي، د کتاب په ليکلو کې د ليکوال محرك يا د هڅونې لاملونه په هغه پورې اړه نه لري، لکه د يو کتاب د خرڅو شوو نسخو له شمېر سره چې يې کار نشته.

انګليسي ليکوال

سامرست موام

(( داسې کوم شي نشته چې د زده کړې له لارې تر لاسه نشي.
هيڅ شی زده کړې ته نه رسېږي. زده کړه بد اخلاق پر ښو اخلاقو بدلوي. ناوړه اصول سموي او د هغې پر ځای يې راوړي. زده کړه انسان د پرښتو تر کچې لوړ وي.))

مارك تواين

# وییپانګه

((الف))

آز: حرص

آغلی: ښکلی

استخراج: راویستل، راوتل، خارجېدل

استوګه: استوګنه، مېشتېدنه

اشلوك: شعر، نظم

امسال: سږ کال

انتشار: خپرېدل، خواره واره (منتشر- پاشلی، خپاره)

انتصابي: نومول شوی، چې انتخابي نه وي، نصب شوی

اند: فکر

اوربلکی: اورلګید

اوره: وریځ

اواللعزم: لوی پیغمبران چې په خپل ماموریت کې يې له پوره زغم او استقامت څخه کار اخیستی وي.

ایثار: قرباني، سرښندنه

ایرونه: یوه دسته کښتي (د ایرو په بڼه هم شته)

ایلایي: اطاعت (له ایل او ایلېدل څخه)

ایواد: (اوس د هېواد په بڼه)

اړینه: ضروري

((ب))

باجره: غنمو او وربشو ته ورته یو ډول داني دي چې ډوډۍ ترې پخوي.

بال: وزر

بجلي ګر: د برېښنا مسوول

بدوي: لومړنی، ابتدایي، وحشي

برڼ: لوړ باغ

برتي: څېره (لکه په پوځ کې برتي کېدل- څېره کېدل) په لښکر کې شاملېدل

بردمه: بالکل، مالامال

برمل: ماسپښین

برهان: دلیل

بری: پخوا يې فعلي بڼه (بول: فتحه کول) هم مستعمله وه، اوس بری د بریالیتوب یا ظفر لپاره کارول کېږي.

بریا: لاسته راوړنه، کامیابي

بریخر: غرمه

بصر: سترګې، نظر

بلاغت: څرګند، تیار

بمبڼ: د هندوانو روحاني مشر

بنستیز: بنیادي، اساسي

بهیر: جریان، کتار، لړ

بودتون: بتخانه، بتکده

بورجل: اقامت ګاه، سنګر، مسکن

بولله: قصیده

بټ بېدیا: توده صحرا، تود بیابان

بېړی: زولني

((پ))

پامور: د پام وړ، د پاملرنې وړ، د توجه وړ

پرتله: مقایسه

پرتم: دبدبه، شکوه

پسمانده ګي: وروسته پاتې والی

پسول: ګاڼه، زیور

پسولل: ګاڼل، ښکلي کول، أراستن

پلوشه: مو، بته

پن: انداز

پوپل: د یو ګل نوم

پوکړونه: پوکول، پوف کول، دمول

پويايي: فعالیت، حرکت، ولولې

پیشنمی: پیشلمی

پیودل: پییل، منظم کول

پیخ: زغم، صبر، نیمګړتیا، عیب

پېر: دوران، مهال، وخت، ځل، وار

((ت))

تاثر: خواشیني، خپګان

تادیب: ادب ورکول

تالاو: ډنډ، تالاب

تاني: حوصله، دقت

تبعید: شړنه، له خپل هېواد څخه په زور شړل، په بل ځای کې چېرې اوسېدنه

تپ: زخم

تثبیت: جوت، ثابت، څرګند، ښکاره

تحقیر: کم ګڼل، سپک ګڼل

تذکره نګار: تذکره لیکونکی، د ژوندلیک لیکونکی

تربته: وارخطا، هک حیران

ترقي یافته: پرمختللی

ترمل: ماښام (ښايي مل د مهال لنډیز وي په دې

توګه: برمل: لوړ مهال (ماسپښین)، برمل: کوز

مهال: مازیګر او ترمل: تور مهال یا تیاره مهال ماښام وي.)

ترې: د تېرېدو ځای، عبور، پلی، (د ترې په مؤنثه بڼه اوس هم په ختیځه لهجه کې ژوندۍ

کلمه ده، هغه نرۍ لار چې د سیند او غر ترمنځه تېرېږي.)

تریخی: تلخه

تسلسل: دوام، جریان

تسبیحات: په پاکۍ یادول، په سپېڅلتیا سره

تصنعي: غیر طبیعي

تعاون: مرسته، همکاري

تعلیقات: نښلونې، لمن لیکونه

تکلف: سختي، پېچلتیا (له تکلیف څخه

تکلف: سختي، تکلیف

تل: ژورې، عمق

تمهید: مقدمه، سریزه

تمیز: پاکي، نظافت، غور، فکر

توکم: نژاد

توکي: عناصر، برخې

توکي: عناصر، مواد

تیرون: تېرېدل، ګذر، (خو دا کلمه د تیرې او یرغل په معنا هم راځي)

تېرېدنګ: فعلي بڼه: تېرېدل، د نوم بڼه: تېرېدنګ لکه خپرېدل: خپرېدنګ

((ټ))

ټاپې: دوران، وخت، مهال

ټوټکې: شګون، جادو

ټیک: له سرو څخه جوړه شوې ګاڼه چې په تندي راځړېږي

((ث))

ثقافت: کلتور، فرهنګ

ثمین: ګران بیه، قیمتي، ارزښتمن

((ج))

جاج: سوچ، فکر

جاګير: ملکيت، د ډېرو ځمکو ملکيت

جام جم: د جمشيد جام چې هر څه په کې ښکارېدل

جبلي: غرنی، طبيعي

جبين: تندی، تڼده

جرړې: ريښې، بيخونه

جګړن: جنګيالی، عسکر، لښکر

جنډې: جګه ونه

جنډی: ګل

جېل: زندان

((چ))

چنډی: شاعر

چونې: بلبل

چيتر: د چيتر مياشت، د پسرلي باراني مياشت

((ح))

حاذق: هوښيار، تکړه (حاذق طبيب ښه او اغېزمن طبيب

حباب: د اوبو په سر پوکنۍ

حباب: پوڼاکه

حزم: محکم، استوار ساختن، هوشياری

حشم: شوکت، جلال

خصمانه: غليمانه، دښمنانه

حلقه: کړۍ

حليم: مهربان، شفقت، نرمي

((خ))

خارپوڅي: خاپوړې

خپسر: ځان، خپل ځان، خپلسر

ختن: په چين کې د افسانو او ښکلاوو سيمه ګڼل شوې ده. وايي چې د هوسيو نافې يې د مشکو او عطرونو ښکلې ځپې خپروي.

ختي: لباس، کميس

خدم: خادم، خدمتګار

خلقت: خوی، عادت

خنډ: مانع

خوان: دسترخوان

خوف او رجاء: ډار او اميد

خونول: (په بوللـه کې وخونوليه) مصدر يې

خونول: قربانول، ځارول، نثارول

خوړ: د سيلاب د راوتلو لار

((ځ))

ځل: ځلېدل، درخشش

ځلا: رڼا، روښنايي

((ښ))

ښپان: ښپاند، مواج، ښپه لرونکی

ښکول: کشول، کشيدن

ښنډونه: ښنډ: افق، کناره

((د))

د ژوند مدار: د ژوند چاپېريال، د ژوندانه ډګر

درنګ: کان، معدن

دُرونه: غمي، مرغلري

درى: له درېدلو څخه اخيستل شوی، درېږي، ودرېږي

دريځ: منبر، د درېدو ځای

دکلمه: په دقيقه او شاعرانه ښه د شعر لوستل، د شعر ښه او غوره لوستل، غوره ادا

دلالت: د دلیل راوړل
دیباچه: سریزه، مقدمه
دیوات: مشوانۍ
دښنه: دښمن، غلیم

((ذ))

ذاتي: اصلي

((ر))

رابیا: راگرځول، بېرته ترلاسه کول
رامشت: طرب، ساز او سرود
رامشتگر: مطرب، سازی
رپي: بیرغ، جنډه
رسالتمن: د رسالت لرونکی، متعهد، ژمن
رسن: (دار و رسن):
رغونه: د غرو لمنې
رکن: برخه، غړی
رمز: راز، سمبول
رندانه: مستانه

((ز))

زاید: اضافه، سرباري، ډېر زیات
زبون حالي: بدمرغي
زغل: ځغستل، منډه وهل
زلما: ځواني، زلمیتوب
زنار: رسی
زوږ: فریاد، هنگامه، ولوله
زېرمه: ملاتړ حمایت، حفاظت، (اوس د ذخیرې په معنا کارول کېږي)

((ژ))

ژانر: ډول (ادبي ډول)

((س))

سالونه: شنبلی، سرمه ریگ
سپند: سپیلنی
ستهان: ستان، ځمکه، سرزمین
سجع: سجع لرونکی، وزن لرونکی، أهنگ لرونکی
سرپول: گرټ کول، لکه د چاپو سر پول
سرگذشت: هغه څه چې په ژوند کې تېرېږي، د ژوند حالات، ژوندلیک
سفله: ناپوه، جاهل
سلاست: رواني
سلنه: فیصدي
سماج: ټولنه
سمبول: نښه
سهل: اسان
سوراړا: وچ کلک
سوژه: موضوع
سیر: سفر، گرځېدل، یون
سینگړ: کاږ، سنگلاخ
سپنسن:

((ش))

شاخ: ښاخ
شام: ماښام
شرف: وياړ، شرافت
شنسب: د غوریانو د لوی نیکه نوم دی (شین اسبه)
شها (شهی): ښکلې، معشوقه
شهکار، بې جوړې کار، له عظمته ډک اثر، ستر کار

شولل: شول (اوس يوازې په يو لام په فعلي بڼه)

شڼ (شڼا): مست، مستي، فعلي بڼه يې شنېدل دی چې اوس هم په ختيځه لهجه کې شته او د آس د شنېدلو لپاره کارول کېږي.

((ښ))

ښندو: د ښندل له مصدر څخه، نثارول، بخششول

ښکلونکی: سينګاروونکی، ښکلی کوونکی (آراينده) (ښکل يې هم د فعلي مصدر بڼه ده).

ښځمنو: ښځينه وو، مېرمنو

((ص))

صراحت: څرګندوالی، په ښکاره بڼه

صم: کوڼکک، زهر

صيقل: تورول

((ط))

طنازه: ښکلې، دلربا

طوس: طوس په اوسني ايران کې يوه سيمه ده، د فردوسي د زوکړې ځای

طوق: د غاړې زنځير

طيلسان: بې لستوڼو اوږده جامه، هغه جامه چې قاضيان او خطيبان يې اغوندي.

((ع))

عارضه: نقصان

عارضي: ضمني (چې اصلي نه وي)

عروج: لوړتيا

عقليت: هوښياري، پوهه

((غ))

غزال: هوسی

غله: غله جات، دانې، حبوبات (غنم، وريشې او نور مواد)

غوړول: خپرول، خورول

((ف))

فانوس: څراغ، (د پانوس په بڼه هم راځي)

فتنه: فساد، امتحان، ازمايش

فراغت: خلاصون، وزګارتيا

فرقان: د پاک قرآن يو بل نوم، د قرآن عظيم الشان ٥٢ سورت چې (٧٧) آيته لري

فروعات: ضمني، څنګيز، چې اصلي نه وي

فکټ (فاکټ) سند، لاسوند

((ق))

قريحه: شعري ذوق او وړتيا، استعداد (د شعر په برخه کې راځي) ښه قريحه، ښه ذوق، ښه استعداد

قطب: د ځمکې دوه مخامخ مرکزونه چې شمال او جنوب بلل کېږي.

((ک))

کتابګوټی: کوچنی کتاب، رساله

کجل: د رنجو په شان تور مواد

کرکټر: (د کيسو او افسانو) څېره، اتل، قهرمان

کلاسيک: لرغونی

کمند: لومه، جال، پړی، تناب

کهاله: کهول: کورنۍ، خاندان

کوکب: ستوری

کون: دنيا

کوږ: هيڅ، په هيڅ شمېرلی

کیکر: یوه ونه چي پاڼې یې زیړې او ازغنه ده دیوه سحرایي مرغه نوم هم دی، صحرایي چرک.
کخوره: خلطه
کښل: لیکل

((گ))

گاڼل: ښکلی کول، زیورول، د زیور او گاڼې فعلي بڼه (پخواني)
گرز: گرد
گره: غوټه
گهیځ: سهار
گوټ پیر: ځنگ، گوټ، څنډه
گوښی: جلا، بېل

((ل))

لاسکښلي: قلمي
لاښونه: د غرو څنډې
لرمل: مازیگر
لوغړن: ضعیف، کمزوری
لونل: پاشل
لوړول: پورته کول

((م))

مؤرخ: تاریخ لیکونکی
ماته پېړی: مات تخت، ماته څوکی
مالکي: مالکك والی
متانت: کلکوالی، پیاوړتیا، دروندوالی
متبرك: مبارك، سپېڅلی
مثل: متل
مجال: فرصت، امکان
مخبط: دا هم امیخته شفته، تباه، فاسد
مخکښ: تر ټولو مخکې، پېشگام
مرأة العروس: د ناوې هنداره
مراقد: د ((مرقد)) جمع، زیارتونه
مرقد: (جمع یې مراقد): مزار، قبر، زیارت
مزیت: ښېگڼه
مستعار نوم: پور شوی نوم، د خپل نوم پر ځای یو بل نوم غوره کول چي اصلي نوم یې څوك ونه پېژني.
مسجع: وزن، وزن لرونکی
مشاطه: ناینه، سینگارگره
مظاهر: ببلگې، نمونې، ښکارندې
معاشره: ټولنه، جامعه
مافیها: هغه څه چي په هغې کې دي
مرسل، مرسلان: د خدای ج له خوا رالېږل شوی،
معراج: اسمان ته تگ، پورته تلل، تکامل
معرفت: پوهه، علم، د عرفان د سلوك دریم پړاو
معشیت: زندگي
معلول: د یو پېښې او علت له کبله ناتوانه یا کم توانه شوی
معیوب: عیب لرونکی، نیمگړی
مقفی: قافیه وال، د قافیې لرونکی
مقید: ژمن
مکیز: ناز، عشوه
مملوکي: بنده گي، غلامي، مریيتوب، د مملوك وضع او حالت
منثور: په نثر
منقد: نقاد، کره کتونکی، نقد لیکونکی
مهار: تابع، په ولکه کې راوستل

مهار: قابو، په خپل لاس کې نیول

مهتاب: سپوږمی

مواعظ: وعظونه

موشگاف: نازکخیال، باریکخیاله، چې خیال
يې وېښته سوری کوي

میرخمن: دښمن، غلیم

((ن))

ناچاودي: نامنفجر شوي

ناخن: نوک

نادر: ډېر لږ، کم، خال خال

نرد: (شطرنج) یوه لوبه ده

نسب: نژاد، قوم، قبیله

نشت: نشت د نشته یوه د لنډیز بڼه ده. نابود
اوس هم په پښتو کې شته لکه په ښېرا کې
((خدای دې نشت کړه))

نغرل: تېرول، خوړل

نغوربېدل: اوربېدل

نقاد: کره کتونکی، نقد لیکونکی

نقش نگین: د غمي انځور

نمرى: جامې، کالي، لباس

نمزدك: جومات، مسجد

نوع: ډول

نول: غم، بدمرغي، خپگان، وير، کړاو، ماتم

نیسان: پسرلی (د ثور میاشت)

نیلی: اس

((و))

واله: وياله، جوى

وجايب: دندې، وظایف، مکلفیت

وچوبی: وچوالی، وچ شوی، بې اوبو

ويسا: باور، اعتماد، ډاډ، اوستا

ویساك: د هندوانو جشن

ويلاړ: نیت، هوډ، اراده

وېرپا: وړیا، مفت

وړتیا: استعداد

وړنگن: درخشان، مشعشع، (وړانگو ته
منصوب)

((هـ))

هتیاتي: هت، کلمه خوشی و در وقت اختیتام
کار بکار برده میشود.

هلال: سپوږمی (نوې میاشت)

هویت: پېژند

هویه: هگی

هډو: بیخي (اصطلاح غوندې ده)

((ي))

یم: دریاب

ینه: ځيگر

یون: حرکت، سفر، رفتار، په پښو تگ

## اخځلیکونه:


۱_ احمد شاهي شهنامه، ناظم حافظ مرغزی، پېژندنه او تعليقات: پوهاند عبدالشكور رشاد، د متن سمون، سريزه او لمنليكونه: محمد معصوم هوتک، کندهار، علامه رشاد اکاډیمي، ۱۳۸۷هـ.ش. کال
۲_ اوسني ليكوال، دويم ټوک، عبدالرؤف بېنوا، کابل
۳_ اوسني ليكوال، لومړی ټوک، عبدالرؤف بېنوا، کابل، ۱۳٤۰هـ.ش. کال
٤_ پټه خزانه، محمد هوتک بن داوود، کابل، ۱۳۳۹هـ.ش. کال
٥_ پښتانه شعراء، لومړی ټوک، عبدالحی حبيبي، کابل
٦_ پښتانه، پوهاند ډاکټر حبيب الله تږی، د پښتني فرهنګ د ودې ټولنه، جرمني، پېښور چاپ، ۱۳۷۷هـ.ش. کال
۷_ پښتو ادب کې د مېړمنو برخه، شاه جهان، پښتو اکيډيمي، ۱۹۹۳م. کال
۸_ پښتو قلمي نسخې، (ناچاپ اثر)، څېړندوی حبيب الله رفيع
۹_ تذکرة الاولياء د سليمان ماکو، پوهاند عبدالحی حبيبي په سريزه، کابل
۱۰_ تور برېښ، سرمحقق عبدالله بختاني، ۱۳٤۷هـ.ش. کال
۱۱_ د ادبياتو په لړ کې، پوهنمل بريالی باجوړی، ۱۳۸۷هـ.ش. کال
۱۲_ د استاد ياد (د مقالو ټولګه) کابل، ۱۳٦٤هـ.ش. کال
۱۳_ د افغانستان ژبې او توکمونه، دوست محمد دوست، کابل، پښتو ټولنه، ۱۳٥٤هـ.ش. کال
۱٤_ د پښتو ادبياتو تاريخ، دويم ټوک، پوهاند عبدالحی حبيبي، کابل
۱٥_ د پښتو ادبياتو تاريخ، دويم ټوک، پوهاند عبدالحی حبيبي، کابل چاپ.
۱٦_ د پښتو ادبياتو تاريخ، لومړی او دويم ټوک، پوهاند عبدالحی حبيبي، پېښور، دانش خپرندويه ټولنه، ۱۳۸٤هـ.ش. کال
۱۷_ د پښتو د نوي ادب لارې، پوهاند عبدالحی حبيبي
۱۸_ د پښتو لومړی ژباړل شوی ناول کوم يو دی؟ کابل مجله، ۱۳٦٦هـ.ش. کال (جدي _ حوت) د زرين انځور مقاله.
۱۹_ د پښتو نثر تاريخ، محمد افضل رضاء، پېښور، دويم چاپ، ۱۹۹٥م. کال
۲۰_ د پښتو نثر هنداره، پوهاند صديق الله رښتين، پېښور
۲۱_ د حمزه شينواري كليات، پېښور، پښتو اکيډيمي چاپ
۲۲_ د خلکو سندرې، حبيب الله رفيع، کابل، ۱۳٤۹هـ.ش. کال
۲۳_ د عبدالحميد ديوان، د سرمحقق زلمي هېوادمل په زيار او سريزه، کابل چاپ.
۲٤_ د عبدالحميد مومند كليات، د محمد آصف صميم په سريزه، ۱۳۸٦هـ.ش. کال
۲٥_ د عبدالحميد مومند كليات، دويم چاپ، سريزه، سپړنه او تدوين د محمد آصف صميم، پېښور، دانش خپرندويه ټولنه
۲٦_ د عبدالحميد مومند ياد (د مقالو ټولګه) کابل، ۱۳٦٦هـ.ش. کال

